# حرمت

# طالب بوځي

# اوسياسي ډګرونه فتحه کړل !!

شپاړسم کال، لومړی، پرلپسې ۱۰۸ مه ګڼه،
میزان۱۳۹۷ل، صفر - ربیع الأول ۱۴۴۰هـ ق، نومبر۲۰۱۸م

* دشيخ الحديث مولاناسميع الحق رحمه الله دردناك شهادت
* د شهيد مولانا سميع الحق
يو ارمان پوره او يو نيمګړی پاتې شو!
* د استاد العلماء! شهيد مولانا سميع الحق رحمه الله
په ژوند، علمي خدمتونو او کارنامو څو ټکي ...



* تجاوز امريكا بر افغانستان در ترازوی حقوق بين‌الملل امروزی
* په جنوب او غرب حوزه کې د دښمن د پوځي رهبرۍ ځپل کيدل
* له محترم ملا برادر اخوند سره تازه مجلس
* نفوذي تکتيک هم بديل لرلی شي!
* خپل سريتوب د کابل رژيم په قاموس کې

# د ماسکو په غونډه کې د اسلامي امارت

## د استازو له لوري د اورول شوې بيانيې بشپړ متن








## علمي، فرهنگي، ټولنیزه اسلامي خپرونه


شپاړسم کال، لومړۍ، پرلپسې ۱۰۸مه گڼه،
میزان۱۳۹۷ل، صفر-ربیع الأول ۱۴۴۰هـ ق، نومبر۲۰۱۸م

**امتیاز :**

**دا متیازخاوند :** دافغانستان اسلامي امارت دفرهنگي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر :** عبید تنویر

**لیکوال پلاوی :** ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

**گډون :**

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۸۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۲۴۰ کلدارې |
| امریکا : | ۶۰ ډالره |
| اروپا : | ۶۰ یورو |
| یوه گڼه : | ۱۵ افغانۍ<br>۲۵ کلدارې |

**یادونه**

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانگه

**پتې :**



srak_111@yahoo.com


## لړلیک

بسم الله الرحمن الرحیم

سرمقاله

# طالب پوځي او سیاسي ډګرونه فتحه کړل !!

دمتعال رب جل جلاله په خاص نصرت امریکا اولاسپوڅویې په هرمیدان کې په ګونډو اوله پښوغورځول شوي

په پوځي ډګرکې به له نورو خبرواوزیاتو شواهدو تیرشو یواځې دکندهار هغې تاریخي پیښې ته به اشاره وکړو چې تیره میاشت داسلامي امارت یوسرښندونکي اتـل (ابودجانـه) پـه څـومره لـوړ همت اوحیرانـونکي جهـادي تکتیـک دامریکااولاسـپوڅو دلـوړې اوحساسي کچې غونډې ته ځان ورسـاوه نـه داچې ناسـته یـې تارومـار کـړه بلکې دزرګونـو مظلومـو افغانـانو او مجاهـدینو قاتـل اودامریکادجاسوسانو سرکرده (کومندان رازک) یې په ککره وویشت اوجهنم ته یې ولیږه دغه ډول یې دتوپـک شـپیلی پـه امریکـایې قومندان جنرال ملیر اونورو ګڼو صلیبي جنرالانوورواړوله چې څوتنه مهم جنرالان اوپوځیان یې دقومندان رازک په څیر وغځول خپلـه جنرال میلر دشغال په څیر کله دیوي اوکله دبلې ونې شاته پټیده اورمباړې یې وهلې

نوچې دامریکایي قواوو دمشر اودړومبی سطحي دجنرالانو یې دغه حالت او روحیه وي ایا دغه بګیل جنرالان به په کـوم مـورال اواطمنان ددې وس اوتوان ولري چې لدې ورسته له افغان ننګیالي ولس سره پنجه نرمه کړي؟

وئیل کیږي چې دامریکایې قواوو پخواني قومندان نکلسیون دکندهار دپیښې په ورځ په خپل ټویټرکې لیکلي وو جنرال ملیر که پروت اوځغاسته نه وای کړي له جنرال رازق سره به دهغه ماتم یوځای نمانځل کیده.

سیاسي میدان هم دپوځي میدان په څیر امریکایانوله تیر۱۷ راهیسي په ګورت کې اخیسـتی وو دافغانسـتان دمعضـلي اوروانې جګړې په اړه یې نوري نړې اوکوم هیواد ته حق نه ورکاوه چې دافغانستان په باب دکومې غونډې او کنفـرانس کوربتـوب وکـړي پـه خاص ډول یې داسلامي امارت د هرډول سیاسي اودیپلوماتیکو هڅوپـه وړانـدې ډول ډول بندیزونـه اوخنډونـه وضـع کـړې وو ځکـه امریکایان پوهیدل چې که طالب مرکچیان اواستاځي په خلاص مټ کومي غونډې او ناستي ته ورشي نوحتما به هغوئ دامریکا لـه ۱۷ کلن وحشت اواستبداد څخه پرده پورته کوي او هم به یې دشکست او ناکامی ذلیله څیره اوحالت نړې ته برملا کوي

هماغسي وشول دماسکو دتیري اونی ناسته کې داسلامي امارت زړور پلاوي چې په کوم موقف او دریځ خبرې وکـړې اواصـلي حقائیق یې په مستند اومعقول انداز دنړی په مخ کې کیښودل دامریکا استاځي اودکابل رژیم فرسوده پلاوی یې دومره خجلـه اوذلیـل کړل چې په خپل موقف اودریځ یې تکلم اوتبصره هم نشوای کولای

نوویلای شو چې امریکا په دې سربیره چې جنګي میدان بایللي روحیه یې زیروزبر شوي اودلاسپوڅي رژیـم پـه لیکـو کـې یـې دوارخطایی اوتیښتي ناقوس غږیدلی دطالب له یوه بریدسره پراخي سیمي اوحساس مراکز تخلیه کوي دتوانا رب ﷻ په فضل سیاسي میدان هم داسلامي امارت مجاهدو اوزیرکو دیپلوماتانو ترخپل اهتزاز لاندې راوست نړی ته یـې خپـل حقانیـت، تسـلط، تګـلاره اوپـه ولس کې یې دمحبوبیت کچه په سپینواوصریحو ټکو وړاندې کړه په هغو سربیره یې دنیاوال په دې خبره اګاه کړل چې کـه امریکـایی اشغال اوشتون په افغانستان کې اوږدیږي له ناوړه پایلو به یې هیڅوک په امان کـې نـه پـاتي کیـږي اوددداعـش پـه شـکل اونـورو شیطاني پروژو په توسط به یې ثبات اواستحکام ګواښي.

# د ماسکو په غونډه کې د اسلامي امارت

## د استازو له لوري د اورول شوې بیانیې بشپړ متن

بسم الله الرحمن الرحیم

نحمده ونصلي علی الرسوله الکریم وعلی آله واصحابه اجمعین أما بعد:

تر هر څه د مخه له ټولو ښاغلیو او آغلیو ګډونوالو څخه مننه کوم او کور ودانی ورته وایم چې زمونږ د ګران هیواد افغانستان او مظلوم افغان ولس د ستونزو د هواري په اړه د بحث او نظر شریکولو لپاره دلته سره راغونډ شوي، په ځانګړې ډول د روسیې د فدراسیون د حکومت څخه مننه کوو چې پخپل هیواد کې یې ددې مهمې ناستې لپاره آسانتیاوې برابرې کړې دي .

اوس غواړم چې د خپل ګران هیواد د روان وضعیت په هکله ددې ناستې له ګډونوالو سره معلومات او د امارت موقف شریک کړم .

**په افغانستان کې د تیرو څلورو لسیزو د غمیزو او جګړو د دوام عوامل:**

زمونږ ګران هیواد، مسلمان او مجاهد ولس د تیرو څلورو لسیزو را په دیخوا د اور په لمبو کې سوزي، مادي او معنوي هستی یې تالا او ترغه شوې، د پرمختګ مخه یې نیول شوې، په سل هاوو زره خلک بې کوره شوي، فقر او مسکنت بل هغه لوی مصیبت دی چې د جګړو له امله افغان ولس ورسره لاس او ګریوان دی، د دې ټولو ناخوالو بنسټیز لامل د بهرنیانو لاسوهنې او یرغلونه دي،

د یادونې ده چې افغان مجاهد ولس د تاریخ په اوږدو کې د هر یرغل په وړاندې خپلې مشروع دفاع ته مخه کړې، چې اوس هم د اوسني یرغل په وړاندې له اولسو کالونو راهیسې د اسلامي امارت تر زعامت لاندې جریان لري.

له بده مرغه کله چې امریکې په تشو بهانو سره پر افغان مظلوم ولس یرغل وکړ، په نتیجه کې یې د یو اسلامي نظام په ړنګولو سره د افغانانو سوله ایز ژوند او امنیت په ناآرامیو بدل کړ، هیواد یې اشغال کړ، په سلهاوو زره افغانان یې شهیدان، په سلهاوو زره یې بې کوره کړل، کلي او کورونه یې وران کړل، د ولس تر منځ یې سمتي، قومي، نژادي، مذهبي، او ژبني تعصبونه را وپارول.

د اسلامي او ملي ارزښتونو په له منځه وړلو سره یې اخلاقي، اداري، اجتماعي او فکري فسادونو ته لاره هواره کړه. د کیمیاوي ممنوعه وسلو په استعمال سره یې نه یوازې دانسانانو بلکې د چاپیریال په ککړولو سره د حیواناتو ژوند هم له ګواښونو سره مخ کړ. د هیواد حاصل خیزه ځمکې یې شنډې او پاکه هوا یې ملوثه کړه. هیواد یې یو ځل بیا د مخدره توکیو په مرکز بدل کړ، چې له امله یې متاسفانه د ولس تر ۱۰٪ زیات وګړي په نیشه یې توکیو روږدي شول، دا په داسې حال کې ده چې د اسلامي امارت د واکمنۍ پر مهال په ټول هیواد کې د معتادینو شمیر له څو زرو زیات نه ؤ.

نه یوازې دا بلکې هیواد یې د نړیوالو استخباراتو په ځاله بدل کړ. د خلکو تر منځ یې بې باوري او بې اعتمادي را منځ ته کړه. دا هسې یو څو بیلګې دي، که نه د یرغل په پایله کې چې کومې ستونزې او غمیزې زمونږ په هیواد کې را ټوکیدلي او ولس ور سره لاس او ګرېوان دی ډېر زیات دي.

اوس به راشو چې څنګه ددې غمیزې څخه د افغانستان بیوزله ولس راوباسو.

## سوله:

- **د سولې اړتیا:**

سوله د هرې ټولنې لومړی اړتیا ده، په تیره بیا د مظلومو افغانانو تر ټولو مهمه غوښتنه ده، له سولې پرته آرام ژوند او اقتصادي، تعلیمي، فرهنګي، اجتماعي او سیاسي پرمختګ ناشونی دی، یوازې په سوله کې ولسونو او هیوادونو پرمختګ کړی، لاکن سوله یوازې په ویناوو او شعارونو منځ ته نه راځي، لکه په تیره یوه نیمه لسیزه کې چې د پروژې په توګه استفاده ترې شوې ده، بلکې کلکې ارادې او ښکاره عمل ته اړتیا لري، هر چیرې چې د ولسونو څخه د آزادی حق واخیستل شي، ظاهره ده چې هلته به سوله له منځه ځي او ځای به یې جنګونه او جګړې نیسي.

جنګ د افغانستان په اسلامي امارت او افغان ولس تپل شوی دی؛ ځکه چې هیواد یې اشغال شوی، او اشغالګرو یو اسلامي خپلواک نظام له منځه وړی، نو تر ټولو د مخه باید هغه عوامل له منځه لاړ شي چې په افغانستان کې د سولې له منځه تګ او د جګړې د دوام باعث ګرځیدلي دي.

- **د سولې لپاره مقدماتي اقدامات:**

مخکې له دې چې د سولې خبرې پیل شي، باید ځینې مقدماتي ګامونه پورته شي، چې هغه د سولې لپاره ضروري دي او د اعتماد سازي برخه ده لکه:

- **تورلیست ختمول:**

د سولې پروسه او تورلیست دوه متضاد مفاهیم دي، چې یو له بل سره اړخ نه لګوي؛ نو په کار ده چې دغه بې بنیاده تورلیست او د جایزې لیست چې د خپلو ګټو لپاره د فشار په توګه کارول کیږي ختم شي، تر څو د اسلامي امارت استازي وکولای شي پرته له ستونزو د سولې اړوند خبرو کې په بیلابیلو ځایونو کې برخه واخلي.

دا هم ضروري ده چې د سولې دواړه خواوې په آزاده فضا کې چې د دوی طبیعي حق دی او د هر ډول فشار پرته، د سولې پروسه پر مخ بوزي، نه دا چې یو لوری په تور لیست کې وي، او بل لوری آزادي ولري، دغه بې انډوله پروسه نه پرمخ تلی شي او نه مطلوبه نتیجه ورکوي.

- **د بندیانو آزادول:**

د مجاهدینو او د بې ګناه افغانانو نیول او زندانونو ته اچول د سولې ضد عمل دی، امریکا او د دوی تحت الحمایه رژیم په لسګونو زره افغانان او مجاهدین په خپلو پټو او ښکاره زندانونو کې اچولي او له هغوی سره د ټولو قوانینو خلاف ناوړه او بد چلند کوي، دا څنګه کیدای شي چې یو څوک دې له یو طرف نه د سولې چیغې وهي او له بل طرفه دې داسې ناوړه او غیر قانوني کړنې ترسره کوي؟ دا په خپله د سولې اړوند یو مانع دی، د واقعي سولې راتلو او فاصلې کمولو له پاره باید جانب مقابل د اسلامي امارت مجاهدین او عام بې ګناه افغانان چې له مجاهدینو سره د تړاو په تور زندانونو کې دي، آزاد کړي.

- **په رسمي توګه د دفتر پرانیستل:**

د خبرو لپاره ځای او د ارتباط محل چې د دفتر په شکل کې وي د سولې لپاره ضرورت دی، اوس د خبرو د ځای په توګه د افغانستان اسلامي امارت ښکاره او رسمي ادرس چې یو ابتدایي ضرورت دی، نشته، باید ووایو د سولې اړوند منظم مجلسونه یوازې د دفتر په شتون کې ترسره کیدای شي، دفتر د دې لپاره هم ضرور دی چې د سولې اړوند مطبوعاتي بیانونه

ورکړي، د خلکو پوښتنو ته د یوه مسئول جهت په توګه ځواب ووایي او د ولس او نړیوالو اندیښنې لیرې کړي، همداراز د سولې ضد کړیو ته به دا بهانه په لاس نه ورځي چې د اسلامي امارت رسمي ادرس نه دی معلوم.

- **د افغانستان اسلامي امارت په خلاف زهرجن تبلیغات بندول:**

ټولو ته جوته ده چې د اشغالګرو په ملاتړ د افغانستان اسلامي امارت خلاف پراخه زهرجن تبلیغات کیږي، په اسلامي امارت پورې بې بنیاده تورونه پورې کیږي ، چې دا په خپله د سولې د پرمختګ مانع ګرځي، ځینې استخباراتي کړۍ ناوړه پیښې ته لاس اچوي، مثلا: پلونه الوزوي، د ښوونځیو په شاګردانو تیزاب پاشي، د سرک تر غاړې په ملکي موټرونو چاودني کوي، اختطافونه او داسې نور جنایات تر سره کوي کوي، او بیا په پټو سترګو دغه پیښې د اسلامي امارت په خلاف د تبلیغاتو لپاره د خامو موادو په توګه استعمالوي، او هغه نتایج هم نه اعلانیږي کله چې د تحقیقاتو په پای کې ثابته شي چې دغه ډول ناوړه اعمال د اسلامي امارت د مجاهدینو نه بلکې د استخباراتي کړیو دي، دا ځکه چې دوی فکر کوي په دې ډول به د افغانستان اسلامي امارت له ولس او نړۍ څخه منزوي کړي، نو دغه زهرجن او بې بنیاده تبلیغات باید د سولې په خاطر و درول شي؛ ځکه د داسې زهرجنو تبلیغاتو په څپو کې حقیقت او سوله دواړه قرباني کیږي.

## د سولې په وړاندې خنډونه:

- **اشغال**

د واقعي سولې لپاره باید د ولس ارادې ته غاړه کیښودل شي، اشغال پای ته ورسول شي، ځکه تاریخ ثابته کړې چې افغان ولس هیڅ وخت اشغال ته غاړه نه ده ایښې، اشغال د ټولو غمیزو مور ده، په افغانستان کې سوله او د خارجي قواوو وتل یو له بل سره تړلي دي؛ ځکه چې د خارجي قواوو وتل د سولې لپاره عملي زمینه برابروي، خو متاسفانه لا تر اوسه سوله په افغاستان کې د یو تکتیک په توګه کارول شوې او دا د ولس په سترګو کې خاورې اچول دي.

موږ وینو چې امریکا او ځینې ملګري یې کوشش کوي د واقعي سولې په ځای د افغانستان اسلامي امارت تسلیمۍ ته اړباسي، دوی فکر کوي چې لومړی باید اسلامي امارت په نظامي ډګر کې کمزوری کړي، بیا به یې د قوي دریځ څخه سولې ته مجبور کړي؛ خو دا یوازې ځان تیر ایستل دي چې له ځمکنیو حقایقو سره اړخ نه لګوي، د اسلامي امارت تر شا افغان مجاهد ولس ټینګ ولاړ دی، یرغلګر او انډیوالان یې باید ومني چې د نړۍ هیڅ متجاوز قوت ولسي قوت له مینځه نشي وړلای، او نه ستونزه په بې مسولیته کړنو او غیر واقعي استراتیژیو هواریږي، اصلي خبره دا ده چې د سولې لپاره پخې ارادې او په واقعیتونو ولاړې ستراتیژۍ ته اړتیا ده چې په هغې کې د اشغال خاتمه مهم جزء دی.

- **د یوه اسلامي خپلواک نظام نه شتون**

په افغانستان کې د سولې او ثبات لپاره باید د داسې افغان شموله خپلواک اسلامي نظام په رامنځته کیدو توافق وشي چې افغانانو ته د منلو وړ او د اسلامي او افغاني ارزښتونو څرګندوی وي؛ ځکه چې اسلام د افغان ولس دین او د هیواد د اقتصادي ترقۍ، اجتماعي عدالت او ملي یو والي ضامن دی

- **د سولې د توافقاتو د تضمین نه شتون**

د سولې پروسه تضمین ته اړتیا لري؛ ځکه د دې پرته د سولې د توافقاتو مادي په سمه توګه نشي- پلې کیدای، لهذا ملګري ملتونه، لوی قوتونه، داسلامي کنفرانس غړي او تسهیلاتو برابروونکي هیوادونه باید د توافقاتو د عملي کیدو تضمین وکړي.

- **فعلي اساسي قانون**

اساسي قانون د هر هیواد لپاره مبرم ضرورت دی؛ ځکه چې له هغه پرته د ولس او هیواد د پرمختګ چارې له ګنو ستونزو او

ګډوډیو سره مخامخ کیږي، د اساسي قانون له لارې د افغانستان د هر وګړي شخصي- مدني او سیاسي حقوق تنظیمیږي، د حکومت او ولس په مینځ کې د اړیکو څرنګوالی روښانه کوي، د حکومتي درې ګونو قواوو پر توازن رڼا اچوي، تشکیلات او واک مشخصوي، په مجموع کې د افغانستان د کورني او بهرني سیاست په اړه تګلاره ټاکي.

د کابل ادارې موجوده اساسي قانون د اعتبار وړ نه دی؛ ځکه چې د غرب څخه کاپي شوی، او د اشغال تر سیوري لاندې د افغانستان په مسلمانې تولنې تپل شوی دی، نه د افغانانو غوښتنو ته ځواب ویلای شي، او نه عملي کیدای شي؛ ځکه چې مواد یې په خپلو کې متضاد او مبهم دي، خپله د کابل ادارې د لوړ پوړو چارواکو له خوا په پرله پسې ډول نقض کیږي، بلکې فعلي اداره خپله د اساسي قانون خلاف ده؛ لهذا اوسنی اساسي قانون په فعلي بڼه د سولې په وړاندې یو لوی خنډ دی.

له همدې امله د افغانستان اسلامي امارت د خپل ګران هیواد او غیور ولس د پرمختګ، هوسا ژوند او د چارو د بهبود لپاره یو داسې اساسي قانون ضرور بولي چې د اسلام د مبارک دین د اصولو، ملي ګټو، تاریخي ویاړونو او ټولنیز عدالت پر بنسټ ولاړ وي، انساني کرامت، ملي ارزښتونو او بشري حقوقو ته ژمن وي، د هیواد د ځمکنۍ بشپړتیا او د ټولو هیوادوالو د ټولو حقوقو ضمانت وکړای شي .د داسې اساسي قانون مسوده باید د حریت په آزاده فضا کې د افغاني علماوو او پوهانو لخوا ترتیب شي.

- **د امریکې له خوا د سولې پر ځای د جګړې پالیسۍ ته ادامه ورکول:**

سوله ایز مذاکرات او سوله هغه جملې دي چې د اشغالګرو له خوا تل تکراریږي؛ خو په عملي ډول هر وخت د سولې د خبرو په ځای په سلګونو ځمکني او هوایي بریدونه ترسره کیږي، او ددې لپاره د امریکې وروستۍ تګلاره یو ښه او روښانه دلیل دی، ددې پر ځای چې د سولې لپاره عملي ګامونه پورته کړي، د افغان ولس ارادې ته غاړه کیږدي، اشغال پای ته ورسوي، بر عکس نور عسکر یې راولیږل، او د افغان ولس د هر ډول ځوررولو او وژلو بې قیده اختیارات یې ور کړل، د خلکو په کورونو یې شپني عملیات بیا پیل او بمبارۍ یې زیاتې کړې، چې په نتیجه کې ملکي تلفات څو چنده زیات شول، د نورو نویو پروژو په رامنځ ته کولو او عملي کولو یې د افغانستان او سیمې وضعیت لا پسې کړکیچن کړ، د سیمې او نړۍ د هیوادونو اندېښنې او تشویشونه یې زیات کړل، دا ټول ښیي چې دوی د سولې لپاره نیت نه لري، بلکې د افغان ولس په وژلو او د هیواد په ورانولو کې خپلې ګټې لټوي. او متاسفانه چې دا هر څه د کابل ادارې په مټ او مرسته تر سره کوي.

دا په داسې حال کې ده چې د افغانستان اسلامي امارت وخت په وخت په خورا صراحت سره ویلي چې په جنګونو او جګړو، زر او زور د افغانستان ستونزې نه شي هوارېدی، یوازینۍ لاره چې ستونزې پرې هوارېږي د اشغال خاتمه او افغان ولس خپل برخلیک ټاکلو ته پرېښودل دي.

د یادونې ده چې د افغانستان اسلامي امارت مخکې هم ویلي او اوس یو ځل بیا ټولې نړۍ ته په صراحت سره اعلانوي چې مونږ تیار یو د هیواد د اشغال پای ته رسولو په منظور له امریکا سره مخامخ خبرو ته کینو، او د اړونده موضوعاتو په اړه ورسره بحث وکړو. او له دوی څخه غواړو چې د زور او جګړو په ځای د عقل او منطق غږ ته لبیک ووایي، نور زموږ د هیواد له ورانولو، د هیوادوالو له وژلو او هم د خپلو زامنو له بې هدفه وژلو څخه لاس په سر شي. د افغان ولس ارادې ته درناوی وکړي، او خپل برخلیک ټاکلو ته یې پرېږدي .

د افغانستان اسلامي امارت د تفاهم او مذاکراتو دروازه پرانیستې پریښې. د اسلامي امارت سیاسي دفتر د افغانستان د

مسئلې سوله ایز حل ته د رسیدو لپاره د امارت د یوازنۍ مرجع په توګه فعالیت لري.

## د ځینو مهمو موضوعاتو په هکله د افغانستان د اسلامي امارت موقف:

**د روان کال د کوچني اختر درې ورځنۍ اوربند:**

د تیر کوچني اختر په مناسبت د اسلامي امارت له خوا درې ورځنې اوربند ځرګنده کړه چې په ټول افغانستان کې د یرغل په وړاندې د اسلامي امارت په بڼه کې یو واحد قوت وجود لري اوپه نظامي او ملکي لیکو کې یې مکمل نظم موجود دی، ټول تر یوې قوماندې لاندې دي او د خپلو مشرانو د اوامرو کلک اطاعت کوي. په هیواد کې د شلو ډلو شتون هسې بې بنیاده تبلیغات و .

همداراز، د سولې دښمنانو د ادعا په خلاف دا هم ثابته شوه چې روانه جګړه بین الافغاني جګړه نه ده بلکې دا د یرغل په وړاندې د افغان ولس وسله وال مقاومت دی. افغانان پخپلو کې ستونزه نه لري . بهرنۍ اشغال اصلي ستونزه ده. ترڅو چې خارجي عسکر په افغانستان کې شتون ولري، ترهغو به دا جګړه دوام کوي. له همدې امله په افغانستان کې د سولې تأمین لپاره د بهرنیو عسکرو وتل اړین دی .

د نورو هیوادونو په کورنیو چارو کې لاسوهنه نه کول:

د افغانستان اسلامي امارت د خپل هیواد د خپلواکۍ لپاره مشروع هلې ځلې کوي چې دا د افغان مسلمان ولس طبیعی او انساني حق دی. د خپل هیواد آزادي غوښتل او هلته د خپل ولس د عقیدې مطابق اسلامي نظام جوړول په هیڅ قانون کې ترهګري نشي ګڼل کیدای. غواړو ووایو چې موږ په نورو هیوادونو کې د تخریبي اعمالو اجنډا نه لرو. په تیرو اوولسو کلونو کې موږ دا عملاً ثابته کړې چې په نورو هیوادونو کې مو هیڅ ډول لاسوهنه نه ده کړې. همداراز، بل چاته هم اجازه نه ورکوو چې د افغانستان خاوره د ګاوندیو هیوادونو په ګدون د نورو هیوادونو په خلاف استعمال کړي. زموږ ترجیح دا ده چې د افغانستان مسئله له سولیزي لارې حل کړو .امریکا باید اشغال ختم کړي او د افغانستان ولس ته د خپلې عقیدې سره سم د حکومت جوړونې په ګډون د هغوی په مشروع حقوقو قائل شي. له خپلواکۍ وروسته، موږ غواړو د ګاونډیانو په ګډون د نړۍ له هیوادونو سره مثبت او تعمیري اړیکې ولرو او د هیواد په بیارغونه او پرمختګ کې د هغوی مرستو ته هرکلي وایو. همداشان غواړو د سیمې او نړۍ په ثبات او سوله کې رغنده رول ولوبوو.

**د مخدره موادو د قاچاق او کښت مخنیوی:**

د اسلامي امارت د علني واکمنۍ په وخت کې د کوکنارو کښت صفر ته راټیټ شوی و او د افغانانو په منځ کې پر هیروئینو د معتاد کسانو کچه بلکل د نشت برابر وه. خو په افغانستان تر امریکایي یرغل وروسته د کوکنارو د کرل شوي ځمکې مساحت ۳۲۸ زره هکتاره ځمکې ته رسیدلې او د ۱۷ کلن اشغال تر سیوري لاندې اوس په افغانستان کې د معتادینو شمیر تر ۳ ملیونو کسانو لوړ شوی دی.

د ملګرو ملتونو له نشه یې توکو سره د مبارزې سازمان راپور له مخې په ۲۰۱۷ کال کې د نشه یي توکو تولید ۸۷ سلنه او کښت یې ۶۳ سلنه لوړ شوی دی چې د تولید شویو نشه یي توکو پیمانه ۹۰۰۰ میټریک ټنو ته رسیدلی ده. د اسلامي امارت پالیسي د کوکنارو د کښت او مخدره موادو د قاچاق مخنیوی دی. که په افغانستان کې جګړه ختمیږي، د افغانستان اسلامي امارت مصمم دی چې په ټول هیواد کې د کوکنارو کښت او د مخدره موادو قاچاق صفر ته راټیټ کړي او پدې برخه کې له ګاونډیو هیوادونو او نړیوالو سازمانونو سره مرستې او هماهنګۍ ته آماده دی .

**د ملکي تلفاتو مخنیوی**

موږ ګورو چې په دې ورستیو کې په افغانستان کې د روانې تېل شوې جګړې له امله د ملکي تلفاتو کچه مخ په

زیاتیدو ده، د خپل ولس دغه حالت نه یواځې مونږ بلکې هر با احساسه افغان ډیر ځوروي، افغان ولس زمونږ وجود او تن دی او په تلف یې زمونږ خپل وجود ته تاوان رسیږي.

حتی زمونږ زعیم عالیقدر امیرالمؤمنین شیخ هبة الله اخندزاده حفظه الله په اختریزو پیغامونو کې مجاهدینو ته جدي لارښوونې کړې چې په کومه سیمه کې د ملکي تلفاتو اندېښنه وي هلته باید د عملیاتو څخه ډډه وشي. ددې علاوه، اسلامي امارت پخپلو تشکیلاتو کې د ملکي تلفاتو د مخنیوي په نامه مستقله اداره تأسیس کړې ده چې د ملکي تلفاتو د مخنیوي لپاره کار کوي، او په هر ولایت کې خپل نماینده گان لري چې پیښې له نږدې څخه په دقت څیړي. دغه اداره د کال په اوږدو کې څو وارې د ملکي تلفاتو په اړه مؤثق راپورونه نشروي.

ډیری وختونه اسلامي امارت خپل عملیات له دې امله ځنډولي چې هلته د ملکي تلفاتو اندېښنه وي، خو امریکایان او ددوی ملگري په ملکي کورونو د شپې چاپې وهي، ړندې بمباری کوی او په ملکي سیمو درنې وسلې استعمالوي او حتی د ښارونو څخه خلک په اشتباه نیسي او بیا یې تر تعذیب او شکنجو لاندې وژني. اوس د امریکې د نوې پالیسی سره بمبار او شپني عملیات نور هم ډیر شوی چې ورسره د ملکي تلفاتو گراف هم لوړ شوی خو ډیرې رسنۍ بیا داسې خبرونه، نه نشروي او دغه ډول پیښې بې ثبته پاتې کیږي. ځینې رسنۍ او جهتونه کوښښ کوي چې د ملکي تلفاتو اصلي عاملین پټ کړي، چې دا کار نور هم مرتکبینو ته جرأت ورکوي چې خپلو جنایاتو ته ادامه ورکړي .

د افغانستان د بیارغونې په برخه کې د امریکا ځانگړې څارونکې اداره یا سیگار وایي چې د دوی څیړنې موندلې چې په روان ۲۰۱۸ کال کې پر افغانستان د امریکایي ځواکونو بمباري په بیساري ډول زیاته شوی ده او د همدې کال په لومړی دریو میاشتو کې یې دوولس سوه بمونه غورځولی دي. د ۲۰۱۸ کال د اپریل په دویمه نیټه یې د یوې بیرحمانه هوایي برید په نتیجه کې ، د کندز ولایت د دشت ارچي ولسوالی په یوه مدرسه کې ۱۰۰ تنه د قرآن کریم تنکي حافظان شهیدان او سل تنه نور ټپیان کړل. دا دداسې دردوونکو پیښو یوه نمونه ده. کنه نو په تیرو اولسو کلونو کې دغه شان په سلگونو پیښې شوې چې یا د خلکو کورونه او یا تعلیمي مراکز په نښه شوي دي .

**اسلامي امارت د ملکي تلفاتو مخنیوي لپاره لاندې عملي اقدامات کړي او کوي یې :**

۱ :د ملکي تلفاتو د مخنیوي په موخه په منظم ډول مجاهدینو ته د علماوو له خوا لارښوونې کیږي او په دې هکله باقاعده سیمینارونه دائریږي.

۲ :د مجاهدینو لیکو ته وخت په وخت هیئتونه ځي تر څو د ملکي تلفاتو پیښې وڅیړي او مرتکبین یې محاکمه کړي.

دا هم باید ووایو چې اسلامي امارت د عام المنفعة تاسیساتو جوړول او ساتل د خپل هیواد او هیوادوالو د هوسا ژوند لپاره یو مبرم ضرورت بولي. پلونه، تونلونه، د اوبو بندونه، بریښنا کوټونه، د بریښنا د انتقال مراکز، د کانونو د استخراج او د نفتو د تصفیې مراکز، او سامان الات یې، تعلیمي اداري، مدرسې، مساجد، ښوونځي، پوهنتونونه، صحي مراکز، کلینیکونه، روغتونونه، او داسې نور عام المنفعة ځایونه اسلامي امارت بیت المال او د ولس مشترک مال گڼي او ساتنه یې خپله وجیبه بولي. موږ دیني او عصري زده کړې د ټولو افغانانو او افغاني ټولنې د کامیابی لپاره اړینې بولو.

### بشري مرستې

د افغانستان اسلامي امارت که له یوه اړخه د هیواد د خپلواکۍ لپاره په مبارزه بوخت دی له بله اړخه د امارت تر کنترول لاندې ساحو کې د هیوادوالو د امنیت، خوندیتوب او سوکالۍ په اړه هم جدي گامونه پورته کړي دي.

روان وضعیت ته په کتو سره افغان ولس تر بل هر وخت زیات بشري مرستو ته ضرورت لري، ددغه ضرورت د پوره کولو

لپاره اسلامي امارت نه یوازې دا چې د بشري مرستو په رسـولو کـې د بشرـ دوسـته هیوادونـو، ملګـرو ملتونـو اداري، نړیوالـو مؤسساتو، ملي سوداګرو او نورو بشري بنسټونو امنیت تـه ځـان ژمن بولي بلکې په دوی باندې غږ کوي چې د بشري خواخـوږۍ له مخې د افغانستان اسـلامي امـارت پـه سـاحو کـې مسـتحقو خلکو ته بشري مرستې ورسوي .

اسلامي امارت د خپل کنـترول لانـدې سـاحو کـې ددوی د بشري فعالیتونو لپاره زمینه برابره کړې ده، چې تر ټولو ښه دلیـل یې دا دی چې د افغانستان د اسلامي امارت محـترم زعـیم د تیـر کال په اختریز پیغـام کـې پـه مؤسسـاتو بانـدې غـږ وکـړ چـې د اسلامي امارت د کنـترول لانـدې سـاحو تـه راشي، مـونږ یـې د امنیت تضمین کوو .

**د ښځو حقوق**

اسلامي امارت ښځه د مسلمانې ټولنې معـماره بـولي او د ښځو ټولو هغـو حقوقـو تـه قایـل دی چـې د اسـلام مقـدس دیـن ورکړي دي.

اسـلام ښـځو تـه ټـول بنیـادي حقـوق، لکـه د تجارت او د ملکیت، د میراث، د تعلیم، د کـار، د خاونـد د اختیـار، د امـن، د صحت، او د ښه ژوندانه حق ورکړی دی. همداراز نبي کریم علیه الصلاة و السلام د ژوندانه په اخري لحظاتو کې د ښځو پـه اړه د ښه چلند توصیه وکړه چې دا ټول هغه موارد دي چـې ښـځه یـې د جاهلیـت د دودونـو د وحشـتناکو کنـدو څخـه راوویسـتله او د معرفت، اخلاقو او عزت لوړو مرتبو ته یې ورسوله.

په دې کې هیڅ شک نشته چې په افغانسـتان کـې د ښـځو دحقوقو په وړاندې د اشغال له امله ګڼې ننګونې شته دي، ښځې د ډیرو ناخوالو سره لاس او ګریـوان دي، د ښـځو د حقوقـو نـارې وهونکو په افغانستان کې ۱۷ کاله تیر کړل، په دې موده کـې پـه ملیاردونو ډالر افغانستان ته راغلل خو اوس هم افغانستان د نړۍ په کچه لومړی هیواد دی چې د صحي مراکزو د نه شتون له کبله د اولاد زیږدنې پر وخت زیاتې ښځې مري، اوس هم زمونږ هیـواد کې د کیمیاوي بمونو د استعمال له کبله تـر بـل هـر ځـای زیـات مشوه او معیوب ماشـومان زیـږول کیـږي، اوس هـم افغانسـتان د نړۍ په کچه د لومړیو هیوادونو څخه دی چیرې چې د ښځو اوسـط عمر یوازې ۴۵ کاله دی، د نړۍ په کچه د لومړیـو هیوادونـو څخـه دی چیرې چې تر یو ملیون زیـاتې ښـځې کونـډې دي، د ښـځو پـه نامه راوړل شوي او مصرف شوي لګښـتونه ټـول پـه اداري فسـاد کې بیرته د ښځو د حقوقو د نارې وهونکو جیبونو ته تللي دي.

د ښځو د حقوقو تر نامه لاندې د فحشا، بې حیـایۍ او غیـر اسلامي کلتورونو د رایجولو لپـاره کـار شـوی. د غـربي او غیـر اسلامي او غیر افغاني سریالونو خپرول، اخلاقي جرمونو تـه لاره هوارول او افغاني عنعناتو پایمالولو ته ښځې تشویقول نـور هغـه موارد دي چې د ښځو د حقوقو تر نامه لاندې پـه افغـاني معـاشره باندې تپل شوي دي .

د افغانستان اسلامي امارت له پیلـه د ښـځو د حقوقـو پـه هکله ډیره واضحه او شامله تګلاره لري، لکه څنګه چې اسـلام او بیا افغانیت د افغانستان د مجاهد ملت دوه ستر ارزښتونه دي نـو اسلامي امارت هم د اسلام او افغانیت پـه چوکـاټ کـې د ښـځو ټولو حقوقو ته ځان ژمن بـولي. د اسـلامي امـارت تګـلاره دا ده چې د ښځو حقوق په داسې ډول خوندي شي چې نه د هغـوی روا حقوق تر پښنو لاندې شي او نه یې انساني کرامت او اسـلامي او افغاني ارزښتونه له ګواښ سره مخ شي. همداراز اسلامي امارت ژمن دی چې د ښځو په خلاف ټول هغه ناروا رواجونه او دودونـه چې د ښځو حقوق تر پښنو لاندې کـوي او د اسـلامي اصـولو سره سمون نه لري له منځه یوسي او د ښـځو لپـاره مصـؤن چاپیریـال وړاندې کړي.

**صحت**

د افغانستان اسـلامي امـارت د صـحت لپـاره یـو مسـتقل کمیسون لري چې په ټول هیواد کې په فعالیت بوخـت دی. دغـه

کمیسون په هر ولایت او هره ولسوالی کی خپل نماینده لري تر څو له یوه اړخه د امارت خپلې داخلي صحي چارې پر مخ بوځی اوله بله اړخه، د صحي خدماتو وړاندې کوونکو ټولنو او مؤسسو سره همکاري وکړي او د هغوی امنیت خوندي کړي.

اسلامی امارت هر وخت په مخامخو لیدنو کې او همداراز د مطبوعاتو له لارې نړیوالو ته دا پیغام ورکړی چې د صحت کارکوونکي دوی بې پرې گڼي، په جگړه کې د ټپي شویو ملکیانو او د طرفینو ټپیان باید ټول له کوم توپیر پرته روغتون ته ورسول شی او تداوي یې وشي، په دې لړ کې اسلامی امارت نړیوالو صحي مؤسساتو، لکه د سره صلیب، ایمرجنسي او بې سرحده ډاکټرانو سره تفاهم لري. اسلامی امارت تل د بشري مرستندویه ادارو او حقوق بشر د ادارو څخه غوښتي چې د کابل اداره او بهرني ځواکونه هم دې ته اماده کړي چې د اسلامي امارت په شان د ټپیانو او بندیانو سره ورته چلند وکړي.

اسلامی امارت تر خپله وسه هڅه کړې چې په خپلو سیمو کې روغتونونه او کلینکونه جوړ کړي، صحي پرسونل ورته اماده او وروزي، خو متأسفانه چی اشغالگر یې د ځان لپاره مشروع هدف بولي او تل یې بمباروي، چی له امله یې څو ځله زمونږ پر روغتونونو چاپې اچول شوي، بمبار شوي او حتی زمونږ په سیمو کې د نورو مؤسسو په مرسته چلیدونکي روغتونونه او کلینکونه بمبار شوي دي. په کندز ولایت کی د بی سرحده ډاکټرانو پر روغتون بمبار او دوردگو ولایت کې پر روغتون باندې چاپه یې ښکاره مثالونه دي.

اسلامی امارت د ټولو اړخونو د صحي او تعلیمي پرسونلو د خوندیتوب په اړه اعلامیې خپرې کړي او مجاهدینو ته یې توصیې کړي چې نه یوازې دا چې دا خلک هدف ونه گرځوي بلکې امنیت یې تأمین کړي تر څو خپل کار په ښه توگه وکړای شي، خو متأسفانه چی اشغالگر زمونږ روغتونونه هدف گرځوي، امبولانسونه مو په نښه کوي، د نورو مؤسسو د امبولانسونو څخه زمونږ ټپیان کښته کوي، په روغتون کې زمونږ تر علاج لاندې ټپیان بندیانوي او زمونږ په بندي ملگرو باندی د رنگا رنگ شکنجو سربېره د هغوی معمولي تداوي هم نه کوي.

اسلامی امارت له دې فورم څخه یو ځل بیا ټینگار کوي چی اسلامي امارت تل په صحي برخه کی د خپلو هیوادوالو ټولو حقوقو ته ځان ژمن بولي او تر خپل وسه هڅه کوي چې هغوی ته ټول صحي خدمات په ښه توگه ورسوي. همداراز د حقوق بشر په ادارو غږ کوي چې اشغالگر او د کابل اداره هم دې ته مجبوره کړي چې بشري حقوقو ته په درناوی ، د اسلامي امارت تر کنترول لاندې روغتونونه په نښه نه کړي او د بهرنیو مؤسسو څخه تمه لري چی ټولو افغانانو ته په یوه سترگه وگوری او خپل خدمات وروړسوي، بلکی د اسلامی امارت تر ولکې لاندی سیمو ته ځانگړې پاملرنه وکړي ځکه چې د ښاري سیمو په پرتله په کلیوالو سیمو کې د خلکو اړتیاوې زیاتې دي.

اسلامی امارت د ملگرو ملتونو, د صحت د نړیوال سازمان او نورو صحي مؤسسو سره پوره همکاري لري او دغو همکاریو دوی ته زمینه مساعده کړې چې د افغانستان په ټولو برخو کې خپل کارونه په ښه توگه ترسره کړي. په دې لړ کې د پولیو او نورو واکسینونو پروگرامونه چې د افغانستان په ډیرو برخو کې د اړوندو مؤسساتو سره د اسلامي امارت په مستقیمه همکاري پرمخ بیول کیږي د یادونې وړ دي.

د افغانستان اسلامي امارت یو ځل بیا د صحت اړوند ټولو مؤسساتو او ادارو ته د همکاریٰ په اړه پوره ډاډ ورکوي.

په پای کې زه له ټولو گډونوالو څخه مننه کوم چې د افغانستان د اوسني ناورین په هکله یې زمونږ نظر او موقف په توجه سره واوریده. مننه.

۱۴۴۰/۳/۱هـ ق

۱۳۹۷/۸/۱۸هـ ش ــ ۲۰۱۸/۱۱/۹م

# دمسکو کانفرانس!

## پرستیج بری چاتر لاسه کړ؟

بشیر فرهاد

دنومبر(۲۰۱۸ز) په ۹مه نیټه دروسیې په کوربتوب مسکو کې افغانستان کې دسولې په اړه یو ورځینی نړیوال کانفرانس جوړشوی و.

یاد نړیوال کانفرانس کې دروسیې، چین، امریکا هندوستان، ایران پاکستان، ترکمنستان،ازبکستان، تاجکستان،قازقستان کرغیزستان اوقطر رسمي هیئتونو په ګډون سربیره دکابل رژیم دسولې شورى څلورکسیزهیئت او دطالبانو( اسلامي امارت) پنځه کسیز هیئت هم ګډون دلود

دنړیوالو سیاسي چارو کارپوهانو په اند: ښکاري نړۍ په تیزۍ سره دځینو مثبتو بدلونو په لور درومي، دیوولسم ستمبر په بهانه او دروغو نړۍ ته کوم مغرور هیواد( امریکا) طالبان ترهګر معرفي کړي وو نن اوولس کاله وروسته هم هغه دځینو واقعیتونو په درک کولو سره طالبانو سره دمفاهمت په موخه لارې چارې لټوي.

هغې امریکې او روسیې چې یو وخت یې دشمال اتحاد په ملتیا دطالبانو دله منځه وړلو لپاره پخپل وس کوښښونه کول ،هغه هندوستان چې دطالبانو پخلاف یې شمال ټلواله اکمالوله او ارزو یې وه چې طالبان یومخ له منځه لاړ شي، کله چې داسې و نشول امریکې ، روسیې او نورو په میډیا کې دطالبانو پر ضد په دروغجن پروپاګند پیل کړ خو دمسکوپه نړیوال کانفرانس کې دروسیې، چین، ایران پاکستان او هند طالبانو سره خبروته کیناستل ښيي چې په نړیواله سطحه دمثبتو تغیراتو درامنځته کیدوشیبې نیږدې شوې او دنړۍ یولوی شمیر هیوادونه دې نتیجې ته رسیدلې چې دطالبانو په اړه دمخاصمت او مخالفت دریځ په ځای نورښه داده چې دهغوی موقف ته غوږ ونیول شي

که څه هم دمسکوکانفرانس ته دکابل رژیم دسولې شورى څلورتنه غړي هم لاړوو خو هغه کوم تود استقبال چې په یاد کانفرانس کې دطالب سیاسي استازو اوشو درژیم دشورى دغړو چاونکړ، دمعلوماتو له مخې: دکانفرانس ګډونوالو هیوادو هیئتونو دکانفرانس دپای ته رسیدو وروسته دطالبانو داستازو سره دجلا جلا لیدلو لپاره په نوبت او په ساعتونو ، ساعتونو ولاړ وو او دکابل نه ورغلي پلاوی بیا پخپله کله دیو هیواد هیئت او کله دبل هیواد پسې دلیدلو لپاره پښې تناکې کړې

دطالبانو ( اسلامي امارت) استازو هلته په خورا صراحت او جرئت سره داسلامي امارت همیشنی دریځ

نړیوالوته ارائه او وړانـدې کـړ چـې څـو امریکـا خپـل ټـول ځواکونه له افغانستانه ونه باسي ترهغه دسولې لپاره هلې ځلې کوم ارزښت نلري که امریکـا رښـتیا هـم غـواړي چـې افغانستان او منطقې ته سوله راشي نو سملاسي دي خپـل ځواکونه له افغانستانه وبـاسي زکـه افغانـان هـم دنـورې پشان حق لري چې دځانو لپاره یـو ازاد او خپلـواک هیـواد ولري .

کله چې په ۱۹۸۸ زکې دژنیودتړون وروسته شوروي لښکرې دافغانستان وتلې هغه مهـال هـم زمـوږ دجهـادي احزابو او رهبرانو دنجیب پـه مشرۍ رژیـم سره دخبرو کولو نه انکارکا وه، په دې دلیل چې هغوی دنجیب رژیم دشوروي لاسپوځی او گوډاگی گڼه نن بعینـه طالبـان هـم چې داشرف غنـي درژیـم سره دخـبرو نـه انکـار کـوي پـه همدې دلیل یې کوي چې: داشرف غني پـه مشرۍ شـته رژیم دامریکا اجیر دی او امریکادهغه استازیتوب کـوي و پـه همـدې دلیـل دامریکـا سره پـه مخـامخ خـبرو کولـو ټینگار لري.

دمسکو پـه نړیـوال کـانفرانس کـې شریکـو هیـوادو اسـتازوهم اتفـاق او یـووالی وښـود چـې دافغـاني معضـلې دواقعـې حـل لپـاره دجنـگ پـه ځـای دخـبرو او مـذاکرې لارغوره ده ولې دسیمې هیوادونه په منطقه کې د روان تزویراتي کشمکش ته په کتو دې نتیجې تـه رسیدلې چـې افغانستان کې دسولې راتلو په اړه دامریکا ارادې ته دکتلو په ځای اړتیـاده چـې خپلـه دوی لاس پـه کـار شي او دیـو مـوټي افغانسـتان لپـاره گاونـډي هیوادونـه خپـل رول ولوبوي ځکه په افغانستان کې دنا امنیو له امله گاونـډي او دسیمې هیوادونه نارارم او مضطرب دي نه امریکا!

بـل نړیوالوتـه جوتـه شـوه چـې طالبـان بـې لـه قیـد وشرطه دامریکا یې عسکرو وتل غواړي او په دې لـړ کـې هیڅ نرمښت او شاتگ ته تیارندي په دې اړه دکـانفرانس پـه دوران کـې او هـم دکـانفرانس وروسـته دکـانفرانس دگډونوالو هیـوادو داسـتازو چوپتیـا ددې ښکارندویه ده چې طالبانو وکړای شول کانفرانس کې ناست هیوادونه په دې قـانع کـړي چـې دافغانسـتان اشـغال پـای تـه رسـول دټولو مشکلاتو حتمي حل او اصـل دی چـې تـري پـه هـیڅ صورت تیریدای نشي.

دکتونکـو پـه نظـر پـه ټولـه کـې دمسـکو جریـان داسلامي امارت لپاره یوتاریخي او سیاسي بری دی همدا راز طالبـانو پـه لـومړي ځـل دمسـکو غونـډې لـه فرصـته وکړای شول چې په نړیواله کچـه خپـل دریځ پـه سـمه او روښـانه توگـه مـنعکس کـړي او هغـه تورونـه چـې غـربي میـډیا یـې پـه دوی لگـوي پـه کلکـه ځـواب او رد کـړي ،همدیته په کتو غـربي میـډیادخپل ابیلیسـانه عـادت سره اوس لگیاده داسې تحلیلونه او تبصرې کـوې چـې گـواکې دمسکو کانفرانس ناکامه شوی او په اړه یې دمنفـي تبلیغ په کولو سره خپل شوم اغراض پالل غواړي.

دمسکو پـه نړیـوال کـانفرانس کـې دطالبـان ځرگنـد ظهـور او گـډون وښـوده چـې نړیـوال او پـه خاصـه توگـه دسیمې یوشمیر مهم هیوادونه لکه روسیه، چین باکسـتان ، ایران او هندوستان دامریکا په لاسپوځي رژیـم بـې بـاوره شوي او دهغه وړتیا او صلاحیت ته دشک پـه نظـر گـوري اوعملایې دطالبانو دا دریځ تسلیم کـړی چـې کابـل رژیـم خپلواک حکومت ندی او پـه هـره لویـه او وړه خـبره کـې دامریکایانو حکم او امرته منتظردی لنـډه داچـې دمسـکو کانفرانس دنړیوالو سترگې بینـا کـړې او ورتـه یـې حقـایق وښـودل پـه راتلـونکې بایـد دسـیمې هیوادونـه دورتـه کانفرانسونو له لارې لا نورو واقعیتونو پـه روښـانولو سره دې له امریکا څخه په ښکاره او علنـي توگـه وغـواړي چـې هغـه ژردافغانسـتان اشـغال پـای تـه ورسـوي زکـه پـه دې دټـولې منطقـې خیـر نغښـتی دی او همـدا دافغانـانو او دمنطقې دولسونو گډ ارمغان دی پای

# د مسکو غونډه؛

## په افغان لانجه کې د امریکا پر یکه تازۍ درووند ګوزار!

لیکنه - شفیق

تیره اونۍ د مسکو غونډه چې د افغانستان د سولې پر لارو چارو د بحث لپاره رابلل شوې وه ترسره شوه. امریکا او افغان حکومت ډېره هڅه وکړه چې دغه غونډه ترسره نشي دلایل یې معلوم دي. امریکا نه غواړي چې د افغان سولې او جګړې په باب د دوی انحصار ختم شي.

کابل حکومت هم په دې برخه کې د امریکا له اجنډا نه وتلی دی، خو د امریکا اوکابل د حکومت له هڅو سره بیا هم د مسکو غونډه داسې جوړه شوه چې د طالبانو جګېوړي پلاوي پکې ګډون وکړ، دې پلاوي خپل شرطونه، غوښتنې او اندېښنې ډېرې څرګندې اعلان کړې چې څو ټکي یې ډېر مهم وو:

یو دا چې پر امریکا او کابل رژیم یې تور ولګاوه چې د سولې په خبرو کې صادق نه دي. دوی غواړي چې طالبان ورته تسلیم شي، نه دا چې پر اصولو ورسره سوله راشي.

دوهم ټکی چې تر اوسه پورې په ځینو سیمو کې د ولسي جرګې د استازیو او قومي مشرانو لخوا ویل کېږي اوس طالب مشرانو د مسکو له کنفرانس وروسته برالا وویل چې دوی داعش ډله ډېر ځله تر برید لاندې راوستې، خو افغان او بهرنیو ځواکونو د دوی پر لیکو بمباري کړې او داعشیان یې ترې ژغورلي دي. طالبانو داعش د امریکا او کابل حکومت ګډه پروژه وبلله.

طبیعي ده چې په یوه نړیوال کنفرانس کې د طالبانو د مشرانو ګډون او دغسې څرګندونې چې هغه تر دې وړاندې له نورو خولو هم تکرار شوې وې، یو خاص ارزښت لري. د مسکو د وړمې ورځې کنفرانس په ریښتینې معنا په افغان مساله کې د امریکا یکه تازي او انحصار مات کړ. همدغه د دې کنفرانس تر ټولو مهم ټکی بلل کېدای شي.

د مسکو د کنفرانس یوه اغېزه د ډاکتر زلمي خلیلزاد لخوا د سولې پر پروسه هم لوېږي، ځکه چې طالبانو برالا دا اعلان کړه چې فشار ته نه تسلیمېږي بلکې له دوی سره باید د جوړجاړي پر اصولو خبرې وشي. ایا خلیلزاد دا واك لري او ایا امریکا دې ته چمتو ده چې په ریښتینې معنا له طالبانو سره سوله وشي؟

په هېواد کې روانه وضعه او په سیمه او شاوخوا کې د افغان جګړې په اړه را پیدا شوې اندېښنې له ورایه ښیي چې که امریکا په افغانستان کې خپله ستراتېژي بدله نه کړي جګړه به دوام وکړي، د سولې په نامه تشریفاتي پروسې به بریالۍ نشي، خو پایله به یې د امریکا رسوایي او ډېره بده ناکامي وي. ځکه طالبان اوس په داسې ځواك بدل دي چې په جګړه یې له منځه وړل یوازې د جګړې او بربادۍ د اوږدېدو په معنا دي. همدغسې په سیمه او نړۍ کې هم نور امریکا په هغه دریځ کې نه ده چې هر تعریف دې یوازې د دوی وي. په افغانستان او سیمه کې د سولې او ثبات د راتلو یوازینۍ لاره په معقولو او عملي لارو د سولې او خبرو اترو پیلېدل دي.



# اشخاص نیرومند دایما کامیاب اند

## ن - هاشمی

درحقیقت، بگروند و پس منظر تنظیم های که مدعی جهاد ومقاومت بودندکه برای همه هویداست، که بلاخره با ورود اشغالگران به کشور استهلاک ودرصفوف متجاوزصلیبی منحل شدند.

ولی با تأسف برخی کور نظران، که درین هفده سال زیر یوغ جنگ فکری بزرگ شده اند، آنها نیز به نحوی تحت تأثیر تبلیغات شوم جنگسالاران و کمونستان رفته اند، و برجای تداوم جنگ، اینکه سعی دیپلوماتیک طالبان را ستایش کنند، به باد استهزاء پوچ گرفتند و علیه مسئول وفد دفتر قطر طالبان شیرمحمد ستانکزی تبصیره های نفرت انگیز نمودند.

همه تبصیره ها، پوست ها و نبشته ها را خواندم، اما باور کنید که تمام آن بدور از حقیقت و فقط تهمت بیش نبودند.

زیرا آقای ستانکزی به همه مجاهدین صاحب های دوران جهاد علیه الحاد و کمونست ها معلوم است که وی از ولایت لوگر بـــــوده و از هند در رشتهء علوم سیاسی ماستری دارد ،در حاکمیت طالبان معین وزارت صحت عامه بوده، در زمان جهاد با کمـــونیزم و خلقـــی هـــا با حرکت انقلاب اسلامی افغانستان به سرکردگی مولوی محمد نبی محمدی رحمه الله وابسته بود..

پس با خود گفتم، بیا! یک بار تمام اعضای شورای عالی صلح حکومت افغانستان را با آقای 'ستانکزی" مقایسه کن، از کریم خلیلی گرفته تا آخرین فرد شان کدام یکی در گفتار، استعداد و عالم بودن بارز و موفق هستند، اما در نه یافتم؟

سپس تمام کابینه ای حکومت کابل را تا سران احزاب مقایسه کن، آیا نسبت به شیرعباس وزیران ورزیده و با استعداد دارند؟ لطفا از صلاح الدین ربانی گرفته، تا نرگس نهان همه وزیران دولت فعلی را سکرین کنید...

به نام دمکراسی آمریکائی، تکنوکراتها، مودرنایزشن ها، سیکولارها و کمونست ها مانند، دوستم، صلاح الدین ربانی، عبدالله عبدالله، اشرف غنی، اتمر و ضرار احمد مقبل در این هفده سال بر سرشان حکومتداری کرد/ و می کند، و پس این مردم کند فکر میایند بر نمایندگان مخالفین خود می خندند.

صلح هدف و ارمان اساسی این ملت است، و این یک پروسه ای بزرگ و یک حرکت طولانی است. بهتر این است که هر کس درین راستا حتی یک قدم را با صداقت ور دارد، آنرا باید تقدیر بکنیم، زیرا این حرکت باعث نکته ای پایان اشغال و حفظ کشور شده می تواند.

مه چنین شخصیت ها را در این هفده سال در کشورهائی اسلامی و حکومت فعلی افغانستان ندیده بودم، که مستقیما در کنفرانس بگوئید " که آمریکا خارج شود و یا بزور اخراج اش می کنیم."

و امروز عملا ثابت ساختند و دو تانگ شان را در ولسوال هائی سنگین و دندغوری کاملا تخریب کردند، و گفته می شود که منجر به هلاکت رسیدن هشت سرباز آمریکائی در این دو رویداد شده است.

### افراد نیرومند دایما کامیاب اند

رئیس هیئت طالبان "ستانکزی" هنگامی که با لاروف تصاویر دسته جمعی می گرفتند، دستارچه ای خویش را بر سر خویش گسترد کرد، به این منظور که این در فرهنگ افغان هائی اصیل به معنی تبارز دادن خود باوری، فلاح، استقلایت و به معنی خار بودن برای دشمن است.

نمیدانم که دولت دست نشانده ای و اشغالگران به تعریف این فرهنگ میفهمند یا خیر؟

# د استاد العلماء!

# شهيد مولانا سميع الحق رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ

## په ژوند،علمي خدمتونو او کارنامو څو ټکي ...




ابوظهير شمس ....

دروان( ۲۰۱۸ز) کـــال نـــومبر مياشــتې پــه دوه همــه نيتــه دګاونــډي هيواد پاکستان پلازمينې (اسلام آباد) تــه څېرمــه پينډۍ ښـاربحريه ټـاون کــې دپاکستان او اسلامي نړۍ نوميالی عالم، د ايشــيا دلــويې اســلامې جــامعې (دارالعلــوم حقانيــه )مهــتمم او شــيخ الحـديث مولانــا سـميع الحـق صـاحب دنـامعلومو کسـانو لـه لـوري پـه شـهادت ورسيد انا لله وانا اليـه راجعـون، اِن لله ما أخذ وله ما أعطى وکل شئ عنـده بأجـل مسمّى

له شک پرته دشيخ الحديث مولانا سميع الحق رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ ټـول ژونـد داسـلامي علومـو دخـدمت، تـدريس، تصـنيف او سياسي جهودو او مبارزې نه عبارت و او شهادت يې يوه لويه او نـه جبرانيـدونکې پيښه ده، الله تعالی دې د مرحوم ومغفـور کړي ديني او علمي خدمتونه قبول کـړي او بيرتــه پاتــه کــورنۍ، شــاګردانو او دسياسي مبـارزې لارويـانو او ملګروتـه دصبر او زغـم ترخنـګ دهغـه پـه مسـير بانـدې د اسـتقامت او تلـو توفيـق ورکـړي امين

دا چې مولانا سـميع الحـق رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ يـو داسـې جـامع، کامـل ،منلـی او جيـد دينــي عــالم او ســياسي مشــرو چــې داسلام او مسـلمانانو اوپـه خاصـه توګـه دعلـماوو او مجاهـدينو يـو لـوی ملاتـړی عالم و، بالخصوص زموږ پـه هيـواد بانـدې دپخــواني شــوروي ديرغــل پخــلاف دمجاهـدينو دجهـاد لـه دورې نيـولې داوســني امريکــايي يرغــل پــه خــلاف دتـاريخي جهـادتردورې دخپلوافغـاني ورون پـه ننګـه او ملاتـړ ولاړ و او دژونـد ترپايه ترې وروسته نشـو ،دلتـه دادی پـه لنـډول د مرحـوم دژونـد ليـک راوړو ترخنــګ دهغــه پــه لــوړعلمي، ادبي اوسـياسي مقـام دخپلـو لوسـتونکوسره خواله کوو:

## زوکړه او زده کړې:

اروابناد شهيد مولانا سميع الحق رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ پـه ۱۹۳۷ز کـال د اکـوړه خټـک سيمې پـه يـوه ديـنداره اوعلمـي کـورنۍ [اخوندخيل] کې د وخت دستر محدث اومنلي عالم شيخ الحديث مولانا عبد الحق رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ کره زيږيدلی و

لومړنۍ ديني زده کړې يې لـه خپـل پلار پيـل کـړې او ترلسـم ټـولګي عصري زده کـړې يـې پـه تعليـم القرآن پرائمري( متوسطه) ښوونځي کې ترسره کړې، کـوم ښوونځی چې د دارلعلوم حقـانيې خواتـه دشيخ الحديث مولانا عبـد الحـق رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ لخوا تأسـيس شـوی او اوس يـې هـم څـو پـوړيزه ودانــې د دارالعلــوم حقــانيې دودانيو ختيځ ته موقعيت لري.

د لسـم ټـولګي نـه وروسـته يـې ددينـي علومو لوستلو ته مخه کـړه او هـم هلته په دارالعلوم حقانيـه کـې دمختلفـو

استادانو نه دمختلفو فنونو کتابونو په لوستلو سره په ۱۹۵۷زکې څخه دمروج درسي نظامې نه فارغ شو، دهغه وروسته دعظيم الشان قرآن دتفسيردورې لپاره دمرحوم شيخ الحديث مولانا شيرعلي شاه مدني رَحِمَهُ ٱللَّهُ په ملتيا لاهور ته لاړ ،څو هلته يې دوخت دستر مفسر،لوی ولي او سياسي مبارز عالم مولانا احمد علي لاهوري رَحِمَهُ ٱللَّهُ نه دعظيم الشان قرآن دتفسير دوره بشپړه کړه

د مولانا احمد علي لاهوري رَحِمَهُ ٱللَّهُ دعظيم الشان قرآن دوره په هندوستان او پاکستان کې ترټولومنلې او مشهوره دوره وه، دنوروګڼو امتيازاتو ترڅنګ يې يو امتياز داو چې نوموړي تفسير دمولانا عبيد الله سندي رَحِمَهُ ٱللَّهُ نه لوستی و او هغه دهندوستان دټولو علمي، سياسي او جهادي تحريکونو دمؤسس او رهبر مولانا شيخ الهند( مولانا محمودالحسن ديوبندي رَحِمَهُ ٱللَّهُ)نه لوستی و او په دې ځانګړتيا لرلو ورته د استفادې لپاره ډېر لري لري نه علماء به ورتلل .

شهيد مولانا سميع الحق رَحِمَهُ ٱللَّهُ دپاکستان او سيمې د جيد او سترو علماوو نه داستفادې سربېره دنړۍ دځينو لويو علمي جامعو ،استادانو او شيوخو (لکه د دارلعلوم ديوبند شيوخ،مولانا غورغشتو رَحِمَهُ ٱللَّهُ، مدينې منورې او مکې مکرمې د ځينو شيوخونه) هم اعزازي سندونه ترلاسه کړي وو او په دې توګه يې داحاديثو سند هم ښه عالي سند دی

## تدريس:

په ۱۹۵۸ز کې دارالعلوم حقانيه کې دمدرس په توګه مقرر شو او د درس نظامي دلوميو او منځنيو درجو کتابونو په تدريس يې پيل وکړ، کرار،کرار دلوېې دورې کتابونو تدريس ته ورسيد او کله چې شيخ الحديث مولانا عبد الحق رَحِمَهُ ٱللَّهُ وفات شو ، دهغه ترتدريس لاندې دحديثو دکتابونو برخې ( دبخاري کتاب المغازي او دترمذي ابواب الاطعمه... )واخيستې او دهغه مهال راهيسې د ۲۰۱۸زنومبر تر دوهمې نيټې (چې په شهادت رسيد) دهغو په درس بوخت و

## بيعت:

دبيعت او ارشاد تعلق يې له ۱۳۷۷ هق څخه په مدينه منوره کې دمېشت مشهور مهاجر،روحاني شيخ او عالم مولانا عبد الغفورعباسي مدني رَحِمَهُ ٱللَّهُ سره جوړ کړی و ،هغه د دارلعلوم حقانيه ليدو په موخه اکوړې ته راغلی و مولانا سميع الحق رَحِمَهُ ٱللَّهُ يې د خپلو مريدانو په حلقه کې شامل کړ .

## دندې او مسؤليتونه:

دشيخ الحديث مولانا عبد الحق رَحِمَهُ ٱللَّهُ دوفات وروسته د دارالعلوم حقانيې مهتمم غوره شو او دشهادت تروروځې په همدې دنده پاته و، په دې علاوه د دارالعلوم حقانيه مياشتنۍ مجلې ( الحق) مسؤل مدير دپاکستان دوفاق المدارس منظمې غړی اودخپلې برخې دجمعيت علماء اسلام ( س) لومړی عمومي ناظم (سکتر جنرال) او بيا مرکزي امير هم و په ورته توګه دافغانستان په نوم د دفاع کونسل کوم چې وروسته د پاکستان دفاع کونسل په نوم بدل شو هم مشر و

## علمي اثار:

دتدريس، اهتمام، او د ګڼوسياسي بوختياوو او مصروفيتونو سربېره مولانا سميع الحق داردو ژبې وتلی ليکوال ،قلموال او اديب هم و، نوموړي د ځوانۍ له نوخيزدورې نه دقلمي مبارزې سره بې پايه مينه او علاقه درلوده او دشيخ الحديث مولانا عبد الحق رَحِمَهُ ٱللَّهُ په ژوند کې الحق مجله تاسيس کړېوه او هم يې د (مؤتمرالمصنفين) په نوم ځانګړې تاليفي اداره هم رامنځته کړه، کومې چې تراوسه په مختلفو موضوعاتو باندې لسګونه ټوکه کتابونه او رسالې خپرې کړې

دعلمي اوقلمي خدمتونو لړ کې په کتابونه ليکلو سربېره په روانو حالاتو چې يې کومې سياسي تبصرې ،مضامين او مقالې ليکلې دهغو ټول شمير ندی معلوم، اوکوم کتابونه يې چې چاپ شوي د هغونومونه لاندې په ډول دي:

## ۱-ملت اسلاميه کا موقف اردو

داکتاب دقاديانيانو په رد کې داسلامي امت دريځ د روښانولو پر موضوع هغه مهال وليکه، کله چې دپاکستان پارلمان دپاکستاني

مسلمانانوداوړد احتجاج وروسته دقادیانیانو، نامسلمان ګرځولو په اړه د ټولو دیني فرقو او مسلکونو دعلماوونه دیومتفقه دریځ د وړاندې کولو غوښتنه وکړه، هغه و چې دمولانا مفتي محمود مولانا محمدیوسف بنوري او مولانا شاه احمد نوراني اونورو علماوو تر څارنې لاندې دوه تنه (مولانا مفتي محمد تقي عثماني او مولانا سمیع الحق)یې د ددغه متفقه دریځ دلیکلو لپاره غوره شول ، یوه برخه یې مولانا تقي عثماني او بله یې مرحوم مولانا سمیع الحق ولیکله او بیا د دواړو مجموعه د هغه مهال ملي اسمبلۍ ته د مولانا مفتي محمود رَحِمَهُ اللَّهُ لخوا وړاندې شوه چې دځو اوونیو اوږده بحث او مباحثې وروسته دپاکستان ملي اسمبلۍ دقادیانیانو اقلیت ګرځولو پریکړه وکړه

۲- صلیبي دهشتګردي او ر اسلام

۳- کاروان اخرت

۴-قرآن حکیم اور تعمیر انقلاب

۵-شریعت بل کا معرکه

٦- اسلام اور عصر حاضر

۷اسلام کا نظام اکل و شرب

۸- حقایق السنن شرح جامع السنن لامام الترمذی

۹- دعوات حق

## ۱۰- مکاتیب مشاهیر

وروستی اثر (مکاتیب مشاهیر) دمولانا سمیع الحق رَحِمَهُ اللَّهُ دعلمي، تاریخي او ادبي ذوق یو لوی شاهکاردی اوښیي چې نوموړی یو ډیرباهمت اودسترعزم څښتن و چې آن دعمر په اتیاکلنۍ کې یې هم علمي ،تاریخي او ادبي ذوق دومره تاند او ځپاند و چې دګڼوسیاسي، علمي او درسي بوختیاوو سربیره یې دژوند ترپایه دقلم او کتاب سره بې پایه مینه درلوده

دډیرو په اند مکاتیب مشاهیریوداسې ګرانبیه علمي متاع اوتاریخي اثاثه ده چې په الفاظو کې یې تعریف اسان کارندی که څه هم تراوسه ماته دهغه دبشپړې مطالعې فرصت په لاس نه دی راغلی خو دځو ټوکونو داجمالي کتنې له مخې راته یو ضخیم علمي او تاریخي شاهکار وبریښیده، کوم چې ټول (۸) ټوکه لري، په لومړي ټوک کې یې دخپل درانه پلار شیخ الحدیث مولانا عبد الحق رَحِمَهُ اللَّهُ په نوم دمشاهیرو او معاصرینو لیکونه راوړل شوي او دا ټوک په پاکستان کې ددیني علماوو دسیاسي او علمي مبارزې دیو مستقل دور یوښه انځوروړاندې کوي او دوهم ټوک نه تر پنځم ټوک پخپله دمولانا سمیع الحق په نوم دمشاهیرو او معاصرینو لیکونه راوړل شوي، شپږم ټوک دافغانستان جهاد ته ځانګړی دی، په کوم کې چې دجهادي مشرانو اوقومندانانو په لیکونو سربیره یوشمیرجهادي کارنامو ته هم پکې کتنه شوې ،په اووم ټوک کې دبهرنیو هیوادو دمشاهیرو لیکونه راوړل شوي او په اتم ټوک کې ضمیمات، توضیحات او زیاتونې راوړل شوي او هم یې ځای پر ځای پخپل ادبي ذوق او اسلوب خورا ګټورې او معلوماتي حاشیې او لمن لیکونه پکې کښلي

په دې توګه شهید مولانا سمیع الحق رَحِمَهُ اللَّهُ دجامع شخصیت نه برخمن و ، الله تعالی ورته ددین دخدمت لپاره ګڼ صفات ورکړي وو، مرحوم نه یوازي دحقانیې پشان دسترې جامعې چلونکی او مهتمم و بلکې د درس و تدریس دمسند ترڅنګ دسیاست او مبارزې دازغنې وادۍ لاروی هم و

دشیخ الحدیث مولانا عبد الحق رَحِمَهُ اللَّهُ دوفات وروسته د دارالعلوم حقانیې داهتمام چارې سمبالول هیڅکله معمولي او اسان کار نه و، خو مولانا سمیع الحق رَحِمَهُ اللَّهُ چې په څومره ښه شان، اخلاص، بصیرت او هوښیارۍ سمبال او رهبري کړې وربانديې دهغه ناقدین هم اعتراف لري

مولان سمیع الحق دثاني دیوبند ( دارلعلوم حقانیي) په پرمختګ، ترقې کې هغسي- رول او کردار اداء کړ کوم چې دحافظ محمد احمد رَحِمَهُ اللَّهُ دوفات وروسته قاري محمد طیب صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ دایشیا دسترې جامعې دارالعلوم دیوبند په ترقې او پرمختګ کې اداء کړی و چې د هوښیار او مدبر مهتمم په حیث یې د دارالعلوم دیوبند دتعلیم و تدریس او تنظیم چارې په خورا مهارت سره داسې منظمې کړې چې دهغو په

ليدو به دهرچا له خولې ورته شاباس
آفرين الفاظ وتل! او دكوم په بركت چې
د ختيځ نه تر لويديځ پورې د دارلعلوم
ديوبند دعلمي شوكت شهرت او نوم
لاړ! په ورته توګه مولانا سميع الحق
رَحِمَهُ اللهُ هم دخپل اهتمام او مسؤليت په
دوره كې دارالعلوم حقانيې ته چې كوم
رشد او ترقي وركړه او په ځومره اعلى
سليقه او ذوق يې د دارالعلوم حقانيې
درسي، اداري، عمراني او تعلمي چارې
جوړې او منظمې كړې يقيناً له امله يې
هغه د ستاينې او شاباسي- وړدى اونن
دحقانيې په كتو سره دهر
ديندارمسلمان دزړه نه ورته دعاء وځي !

په حقيقت كې د علمي ، عملي
اوديني خدمتونو ذوق مرحوم ته دخپل
ستر پلار او دديوبندي فكر داسلافونه په
ميراث پاته و چې د ډيرو كمو او په نشت
حساب مادي وسائلو نه په سمه استفاده
يې حقانيې ته دمعنوي ښكلا ترڅنګ
دريكارډ تركچې عمراني او ظاهري
ښكلا هم و ببنله او آن دتخمين او اټكل
له ټولو وړاندينو څخه يې هم ورته زياته
ترقي وركړې فجزاه الله احسن الجزا

د اهتمام په دوره كې دمولانا
سميع الحق رَحِمَهُ اللهُ دبري يو لوى راز داو
چې هغه وسيع الظرف،حليم،مهربان ،د
قوي برداشت او حوصلې خاوند و او په
دي صفاتودرلودو يې د دارلعلوم په
پرمختګ او ترقي كې كليدي رول اداء
كړ، د دارلعلوم دننه يې د شيوخو
،استادانو او طالبانو لپاره دباور او
اعتماده څخه ډكه فضاء برابره كړې وه
ښكاره ده نوموړى دحقانيې داهتمام
سربيره دخپلې برخې دجمعيت علماء
اسلام مشر او قايد هم و، او سياست يو د
ستونزو او ازغيو ډك ميدان دى، چې
ورته هر ننوتونكى دمختلف قسم،
نادودو، ازمايښتونو اومخالفتونو سره مخ
كيداى شي ، مولانا سميع الحق د
سياسي ميدان د لوبغاړي په حيث طبعاً
دسياست دناخوالو څخه مستثنى نه و،
هغه هم دنورو سياستوالو په څېر دګڼو
مخالفتونو او مخاصمتونو سره مخ و،خو
دومره د پراخې سينې څښتن و چې
ټول سياسي مخالفتونه، تورونه او
پيغورونه يې تل به په ورين تندي زغمل
آن تردي چې پخپله دحقانيې په
شيوخو، استادانو او طالبانو كې هم لوى
شمير يې د سياسي تګلارې سره موافق
نه وو!! او دجمعيت علماء اسلام دبلې
برخې دتګلارې څخه يې ننګه او
ملاتړدرلود ... خو مولانا سميع الحق په
ورين تندي هغوى زغمل او شايد داسې
به كم پيښ شوي وي چې دهغه د
سياسي دريځ سره دمخالفت په وجه دي
كوم غالي مخالف طالب هم د مدرسې
نه ويستل شوى وي! زمونږ استاد مولانا
مفتي سيف الله حقاني(اوس ناورغ دى
الله تعالى دي ورته شفاوركړي) دفقيه
الامت مولانا مفتي محمد فريد رَحِمَهُ اللهُ
وروسته د ار العلوم حقانيې ممتاز او
لوى مفتي و دلويې دورې په كال يې
سبق كې طالبانوته كيسه كوله ويلې:
كله چې دعراق ولسمشر صدام حسين
په كويت حمله وكړه او پر ضد يې عربي
هيوادو كې مخالفتونه راپورته شول،
تردي چې دځينو عربي هيوادو په بلنه
دامريكا دهغه وخت ولسمشر لوى بوش
خليج ته امريكا يې پوځونه او جنګي
بيړۍ واستولې، خليج ته دامريكايي
ځواكونو او بيړيو په راتګ سره نړۍ كې
مسلمانان په دوه جلا دريځونووويشل
شول، يوشمير دعراق په خلاف خليج ته
دامريكا يې پوځونو او بيړيو دراتلو
ملاتړي وو او يو شمير نورو بيا خليج ته
دامريكايي پوځيانو اوبيړيو دراتګ او
دصدام حسين په ضد دامريكا ديرغل
مخالفت كاوه، پاكستان كې هم ورته
حال و، ځينو سياسي او ديني ګوندونو
چې د مولاناسميع الحق ګوند هم پكې
و، دصدام حسين په خلاف دامريكا
دحملې ملاتړ كاوه! خو مولانا فضل
الرحمان او دهغه ګوند بيا دامريكا
دتيري په خلاف مارشونه او مظاهرې
كولې، په دې وخت كې خلک حيران وو
چې اوس دچا اومنو ؟ ددې لپاره ځوتنه
د دارلعلوم حقانيې دارالافتاء ته
داستفتاء سره راغلل او له ماڅخه يې
فتوا وغوښته! ما ورته دامريكا دتيري
خلاف فتوا وركړه! سباته په زياترو
اخبارونو كې هغه د دارلعلوم حقانيې
دفتوا په نوم نشر-شوه، مولانا سميع
الحق په لاهور كې په ستيج باندې ته
وينا ته ولاړو چا ورته د دارالعلوم حقانيې

فتوا ورکړه!! ددي خبر په اوریدو دلته دارالعلوم کې ځینو کشرانو شور جوړ کړ چې مفتي سیف الله خو دمولانا سمیع الحق صیب خلاف فتوا ورکړې !او چې کله مولانا... راشي موږ به په دې مسئله میټنګ کوو او دمفتي صاحب نه به پوښتنه کوو چې ولې یې دمولانا صاحب خلاف فتوا ورکړې؟ څو ورځې وروسته مولانا سمیع الحق رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ راغی او د مهتمم صیب په دفتر کې مجلس جوړشو، زه یې هم هغه ته طلب کړم ! یو تن مو لانا سمیع الحق ته وویل: ته! بهر د صدام حسین خلاف او دمتحدینو په ملاتړ ویناوې کوي او دمدرسې مفتي ستا درائې خلاف دعراق او صدام حسین په ملاتړ فتوا ورکړې؟ مولانا سمیع الحق هغه ته وویل: ایازه دمفتي صاحب ضمیرته قلف واچوم؟چې خامخا به دې زما پر ملاتړ فتوا ورکوٌ ي؟ دی پخپله فتوا ورکولو کې ازاد دی! چې هر څه ورته دخپل علم او فقاهت په رڼا کې حق ښکاري هغسې- فتوادې ورکوي.... مفتي صاحب مدظله ویل : په دې سره مې په بدن یخې، یخې اوبه لاړې او خوشال شوم چې چا زما خلاف غوښته سازش وکړې حضرت مهتمم صاحب هغوی څواب او غلي کړل

دمولانا سمیع الحق رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ د پراخ نظرۍ برکت و چې د دارالعلوم حقانیې دفیض او برکت غیره دکوم توپیر او تبعیض پرته دنبوي علوموطالبانوته

خلاصه وه ، کنه نن سبا دمدرسو دننه دمهتمم ددریځ یا فکر سره مخالفت دزغم او برداشت وړندی لیکن مولانا سمیع الحق رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ داسلامي نړۍ د دوهم دیوبند (دارالعلوم حقانیه) دروازې دهر قابل شیخ ، او هراهل طالب په مخ پرانیستې وې چې دبرکته یې نن دارالعلوم حقانیه د ټولو لپاره داحترام او عقیدت وړ مرکزدی.

## افغانستان او حقانیه:

دپخواني شوروي یرغل په خلاف دافغان مسلمان ملت په علمي او فکري ابیاري کې د دارالعلوم حقانیې په ونډه اوکردار سترګې نشي- پټیدلی، زمونږ دپخواني جهاد په لوی شمیر دلومړي صف مشران او قومندانان دحقانیې فاضلان وو او همدا راز دافغانستان اسلامي امارت لوی شمیر غړو هم په حقانیه کې زده کړې او سبقونه بشپړې کړې

بدون شک دمولانا سمیع الحق رَحِمَهُ ٱللَّٰهُدا ځانګړتیا هم وه چې نوموړی دحق په پلوی او دحق نه په ملاتړ کې ډیر وړاندې او هځاند و هیڅکله یې ځان دحق نه په ملاتړ کې پس و پیش نه کاوه او نه یې دخپل اثرو رسوخ لپاره مروج دیپلوماتیک الفاظ او میتودونه کارول ،همیش یې ډانګ پیلې خبره کوله او په افغانستان کې دروان جهاد څخه یې په ښکاره او برملا ملاتړ کاوه.

هو! مولانا سمیع الحق دیو عالم او دیني رهبر په توګه دافغانستان دننه دطالبانو هغسې حامي او ملاتړی و څنګه په فلسطین کې دفسلطیني مجاهدینو یې ملاتړ کاوه،هغه دطالبانو په کورني نظم و نسق ،تنظیم و ترتیب کې رول نه لاره، په دې اړه غربي میډیا چې کوم پروپاګند کوي حقیقت نلري، میډیا او فیسبوک کې دکابل رژیم خیاطان ناسم قضاوتونه کوي هغوی دمولانا سمیع الحق په شهادت جشن ولمانځه! خو حقیقت دادی چې دافغانستان کې دامریکا په خلاف روان جهاد دافغانانو په رهبري او قیادت کې روان دی او پکې هیڅ بهرنی عالم او فاضل کلیدی کردار نلري، دیو رښتیني دیني عالم په توګه یقینا دمولانا سمیع الحق شهادت دَ اسلامي نړۍ لپاره یوه ستره صدمه او دردونکې غمیزه ده چې ژربه ډکه نشي په پای کې دعاء کوو الله تعالی دي دمرحوم په قبر رحمتونه نازل کړي او دمرحوم کړي علمي، سیاسي او تعلیمي خدمتونه دي قبول کړي او بیرته پاته کورنۍ ، شاګردانو او ملګروته دي دجمیل صبر توفیق ورکړي امین

اللّهمّ اکرم نزله ووسّع مدخله وابدله داراً خیراً من داره وأهلاً
خیراً من أهله ونقّه من الخطایا کما ینقّی الثوب الأبیض من الدنس




# په جنوب او غرب حوزه کې

## د دښمن د پوځي رهبرۍ ځپل کیدل

حبیب مجاهد

د افغانستان په جغرافیوي ویش کې د جنوب یعني لوی کندهار او غرب حوزې ولایات هغه پراخې او مهمې سیمې دي چې د نیمایي افغانستان په اندازه مساحت لري. له زابل او کندهاره ونیسه بیا تر فراه او هرات پورې هر ولایت د مساحت په لحاظ د څو ولایاتو هومره پراختیا لري. دا ولایات چې د کندهار، هلمند، فراه او هرات په شان تاریخي او په سیاسي او ستراتیژیک لحاظ مهمې سیمې په بر کې نیسي په نظامي میدان برلاسي یې هم د هر اړخ لپاره لویه لاسته راوړنه بلل کیږي.

د الخندق عملیاتو په وروستیو څو میاشتو کې د الله تعالی په فضل سره د اسلامي امارت مجاهدین توانیدلي چې په دې ولایاتو کې د ګوډاګي رژیم ټول دسر نظامي مشران او مهمې مهرې په ډیر دقیق ډول په نښه او له منځه یوسي. د دښمن د جنګي مشرانو د ځپلو دغه لړۍ د هلمند له ولایت څخه پیل شوه.د اکتوبر د میاشتې په ۱۷ نیټه هغه مهال چې د اشرف غني لخوا د هلمند د جګړو لپاره ټاکل شوی عمومي قوماندان عبدالجبار قهرمان په لښکرګاه ښار کې په خپل انتخاباتي مرکز کې ناست و، مجاهدینو وربandې هغه ریموټ کنټرول ماین منفجر کړ چې د ده ترڅوکۍ لاندې ایښودل شوی و چې په پایله کې یې نوموړی ځای په ځای ووژل شو.

عبدالجبار قهرمان چې آن له کمونیستي دور څخه یې پوځي تجربه درلوده، په هلمند ولایت کې د رژیم تر ټولو مهمه پوځي مهره وه. نوموړي څو کاله وړاندې په هلمند کې د سنګوریانو په نوم د نوي ماډل اربکیانو بنیاد کیښود. چې د لشکرګاه په شاوخوا کې یې اولسي خلکو ته ډیر تلفات ورسول. له جنګي تجربې سربیره نوموړي د یوه فعال تبلیغاتي لوډسپیکر رول هم اداء کوو چې په غږیزو او تصویري رسنیو کې یې د جهاد او مجاهدینو په خلاف ډیر بد تبلیغات کول. د نوموړي له منځه تګ له شک پرته د مزدور رژیم لپاره لویه ضائعه او د مجاهدینو لپاره لویه لاسته راوړنه وه.

د عبد الجبار قهرمان له وژل کیدو دوه ورځې وروسته د اسلامي امارت د یوه تن نفوذي مجاهد ذبیح الله ابودجانه لخوا په کندهار کې په حکومتي لوړپوړو نظامي او ملکي چارواکو یو داسې توپاني برید تر سره شو چې په څو دقیقو کې یې په کندهار کې د ګوډاګي حکومت ټوله رهبري له پښو وغورځوله او د سر کسان یې ورمره یا ټپیان کړل. دا برید هغه مهال ترسره شو چې په افغانستان کې د بهرنیو اشغالګرو مشر جنرال سکاټ میلر کندهار ته په سفر تللی و او د بیرته تګ په حال کې و. په دې برید کې د کندهار امنیه قوماندان

جنرال عبدالرزاق چې په حقیقت کې په ټولوجنوبي ولایاتو کې د دښمن پوځي مشر او د جګړې رهبري کوونکی وو ووژل شو. دغه راز د کندهار د ملي امنیت رئیس د او د کندهار د اتل قول اردو یو لوړپوړی جنرال هم ووژل شول. د کندهار والي توریالی ویسا او په لوی کندهار کې د اشغالګرو ځواکونو عمومي قومندان جنرال جیفري په پېښه کې مرګوني ټپیان شول. چې په دې ډول د کندهار په حوزه کې داخلي او بهرنیودښمنانو ټول د سر نظامي خلک په مرګ یا ټپي حالت کې له صحنې وایستل شول. د کندهار غونډې د یوه مهم ولایت د ټولې پوځي رهبرۍ تس نس کول له شک پرته د الخندق عملیاتو تر ټولو مهمه او ټاکونکې بریا وه .

د کندهار له پیښې وروسته د اکتوبر په ۲۹ مه نیټه په څنګلوري روزګان ولایت کې هغه ظالم او جنایت کار قومندان شجاعي د مجاهدینو د برید هدف وګرځید چې د دې ولایت په خاص روزګان ولایت کې یې له تیرې یوې لسیزې د ظلمونو او جنایاتو سلسله را روانه وه. حکیم شجاعي چې د حزب وحدت د مشر- کریم خلیلي نږدې کس دی په افغانستان کې یو له سترو قاتلانو او جنګي مجرمینو بلل کیږي چې په ۲۰۱۵ م کال کې د بشر- د حقوقو د څار نړیوالې ادارې یې هم په خپل راپور کې یادونه کړې وه او د سترو جنګي جنایاتو عامل یې بللی وو. د اسلامي امارت د مجاهدینو په برید کې د حکیم شجاعي د مرستیال او ۵ سرګروپانو په شمول لسګونه ټوپکیان له منځه لاړل او په خپل مرګوني ټپي شو.

د روزګان له پیښې دوه ورځې بعد د اکتوبر په ۳۱ مه نیټه د فراه ولایت د اناردرې ولسوالۍ په مربوطاتو کې د ګوډاګي اردو هغه چورلکه رانسکوره شوه چې د فراه په ولایت کې د اجیر حکومت ډېری لوړپوړي کسان په کې سپاره وو. رسنیو خبر ورکړ چې په دې چورلکه کې د فراه د ولایتي شورا رئیس فرید بختور، د ولایتي شورا غړې جمیله امیني، د۲۰۷ ظفر قول اردو مرستیال جنرال نعمت الله خلیل او دوو پیلوټانو په ګډون ۲۵ تنه وژل شوي دي. فرید بختور په فراه ولایت کې تر ټولو مخکښ او بانفوذه حکومتي شخص و چې له سیاسي نفوذ سربیره یې په پوځي چارو او عملیاتو کې هم ونډه درلوده.

د نوموړي د وژل کیدو په اړه یوه مشهور ژور نالست رزاق مامون ولیکل چې: فرید بختور په حقیقت کې د فراه جنرال رازق و چې له طالبانو سره په دښمنۍ او سخت چلند یې شهرت درلود د نوموړي وژل کیدل په فراه کې د حکومت لپاره همدومره ضائعه ده لکه د جنرال رازق وژل کیدل په کندهار کې. د فراه د پیښې په تعقیب رسنیو وویل چې د لوړپوړو سیاسي او پوځي چارواکو په وژل کیدو سره په دې ولایت کې د طالبانو ګواښ ځکه تر پخوا هم قوي کیدلای شي چې په فراه ښار د تیرې حملې په مهال هغه څوک چې تر پایه یې مقاومت کاوه همدا د ولایتي شورا مشر فرید بختور و.

لوړ یاد شوي پوځي مشران هغه کسان وو چې په کندهار، هلمند، روزګان او فراه ولایاتو کې د دښمن تر ټولو مهم پوځي چارواکي بلل کیدل. دوی له تیرو لسو کلونو راهیسې د جګړې په ډګر کې لومړنی مسؤلیت درلود او د اشغالګرو په ملاتړ یې د خپل مجاهد اولس په وړاندې جګړې ته دوام ورکاوو.

ددغو لوړپوړو جګړه مارانو په وژل کیدو سره اشغالګر له خپلو تجربه کارو او آزموده اجیرانو څخه بې برخې شوي دي او د مجاهدینو په وړاندې لوی خنډونه له مخې لرې شوي دي. مجاهدین باید د هیواد په نورو برخو کې هم همدې سلسلې ته دوام ورکړي. ځکه د هره ورځ لسګونه وژل کیدونکو عسکرو او معاشخورو اجیرانو په ځای باید د دښمن مهمې مهرې په نښه شي. تر څو د همدې لوړپوړو ټوپکیانو په وژل کیدو سره د دښمن روحیه ماته او په شکست محکوم شي.

# ړندې بمبارۍ

## او د ملکیانو د مرګ ژوبلې زیاتېدل!

م مبصر

د ملګرو ملتونو په تازه راپور کې ویل شوي چې په افغانستان کې د ملکیانو په مرګ ژوبله کې ۵۲فیصده زیاتوالی راغلی. دغه راپور ښیي چې د په ۲۰۱۸ کال کې د ملکیانو مرګ ژوبله د تېر کال د ورته نیټې په پرتله ډېره شوې ده او مسوولیت یې په افغان او بهرنیو ځواکونو اچول شوی دی. راپور کاږي چې د ۵۲ سلنه مسوولیت د افغان ځواکونو پر غاړه دی، د ۴۸ فیصده مسوولیت د بهرنیو ځواکونو او درې فیصده نورو تلفاتو مسوولیت د حکومت پلوه ناپیژانده قواوو پر غاړه دی.

د ملګرو ملتونو تازه راپور په داسې حال کې خپرېږي چې دملي یووالي حکومت هوایي بریدونو ته تر بل هر وخته زور ورکړی او د وسله والو مخالفینو پر ضد د یوازینۍ موثرې وسیلې په توګه ورته ګوري. یوازې په تېرو دوه ورځو کې په کاپیسا او وردګو کې په هوایي بریدنو کې ۳۰ کسان وژل شوي دي. د ملکیانو مرګ ژوبله په وروستیو څلورو کلونو کې په عمومي ډول لوړه شوې ده.

خو له بلې خوا که چیرته پاملرنه وشي، د هیواد په امنیتي وضعیت کې نه یوازې دا چې بدلونه نه دی راغلی، بلکې لا خراب شوی او اوس وسله وال د پلازمینې کابل ښار په اطرافونو کې فعالیت لري. که چیرته نتیجه دغه شان وي او د ملکیانو مرګ ژوبله هم څو برابره زیاته شوي وي، نو اوس سوال پیدا کیږي چې دغه بریدونه د کوم هدف لپاره تر سره کیږي؟ لاسته راوړنه یې څه ده؟

په داسې حال کې د دولت او ولس تر منځ فاصله هم څو برابره زیاته شوې ده او دمګړۍ خلک د ړندو هوایي بریدونو له امله له نظامه سخت ناراضه دي. که چیرته دغه شان ړندې بمباري روانې وي، خلک پر حقه دي چې له نظامه ناراض او ګیله من وي. ځکه د روانې جګړې ضربه همدغه ولس لیدلي او لا یې هم تاوان ګالي. هدیرې مو له شهیدانو ډکې دي. ولې باید موږ بریا په خونړیتوب کې ولټوو؟

که چیرته خونړیو بریدونو نتیجه ورکولی، نو باید لس کاله وړاندې امن او امان راغلی وای چې تر یو نیم سلو زور بهرني ځواکونه له پوره قوت سره په افغانستان کې میشت وو، خو ولیدل شوی چې د افغانستان ستونزه نظامي حل نه لري، نو ولې د امنیت د تامین لپاره نورې موثرې لارې نه لټول کیږي؟ ولې په هغې لاره چې بهرنیان ترکستان ته روان و، زموږ حکومت هم روان شوی دی؟

که حکومت او بهرني ملاتړي یې دغه شان ړندو هوایي بریدونو ته ادامه ورکړي، دملکیانو مرګ ژوبله به څو برابره زیاته شي او پر وړاندې به یې د ولس غبرګون خورا سخت او تند وي. ځکه نو پر حکومت او بهرنیانو غږ کوو چې د بې ځایه هوایي بریدونو پر ځای نورې موثرې لارې چارې ولټوي، څو له دې طریقه هم د امنیت په تامین کې موثر ګام اخیستل شوی وي او هم د ملکیانو مرګ ژوبلې مخه هم نیول شوي وي.



# بېګا شپه څه تیر شول؟

د- حامد

مـازدیګر د کلي شـاته ټـول کلیـوال سره راټول وه او مجلس یې کاوهٔ

هوایي فضاء بنګنو او ډرون الوتکـو نیـولې وهٔ هـر خواتـه کرنګهـار وؤ د کلـي هاغـه رنګین مـازدیګر د ډکـه فضـاء یـې بدرنګه کړې وه، کلیوالو به ویل بیګاته بـه بیا د چا کور بمبارد کوي؟

کومه خور به کونډه شي، کومه مـور به بوره شي، او کوم ماشوم بـه بـې پـلاره شي؟

ماښـام ناوختـه شـوو شـپه راغلـه او بـې پیلوټـه الوتکـو زمـونږ د کلـي څخـه حلقه تاؤ کړې وهٔ

کشـر ورور مـې راتـه وویـل لالا! د کفارو دا بې پیلوټه خو زمـونږ د کلـي پـه سـر ګرځـي داسـې ښـکاري چـې بیګاتـه زمـونږ پـه کلـي چاپـه ده تـه لاړ شـه چـې راته شهید دې نکـړي زه خـو بـه تـا پسـې سخت ژړیږم چې ته شهید شوې.

ورته موسکی شووم

مال روکیه! ته بې غمه شه چې کـوم کارتوس یې زما پـه ټټـر لګیـدلو تـه جـوړ کړی وي هغه بل چا باندې نه لګیږي

په تندي مې ښکل کړو او غـاړه مـې ترینـه واخیسـته ورتـه مـې وویـل چـې اختیاط کـوهٔ هسـې نـه دا ظالمـان تـا راتـه شهید نکړي

زه څـه خبـر وم چې دا رنـګ چنـار زلمی به هم د مرګي سیلۍ وهـي او د تـل لپاره به یې راڅخه جداء کوي

په خندا شـوو راتـه وایـي چـې تـا دا دومره وخت تیر کړو او دوه ځـل زخمـې شوې بیـا هـم د شـهادت پـه تمناء ددغـه صف څخه نه منحرف کیږې

نو ماته چې کور کې شهادت نصیب شي زه به څومره خوښ وم

پر سر مې ورتـه لاس راکـش کـړ او ترینه روان شووم

بار بار یې راته کتل او مـا هـم ورتـه کتل ځکه چې ډیر راته ګران وؤ

چې تر څـو ورتـه ښـکاریدم راپسـې کتل یې د ایة الکرسي تلاوت یې وکړ او په ما یې راچوپ کړ

بـار بـار یـې تـلاوت کـاوهٔ او زمـا خواته یې راچوپ کاوهٔ

چې زه څنګه د کلي څخه ووتم چې ډبـلـډبنې راغلـې او د کلـي ترڅنـګ یـې کیښنولې

زړه کـې مـې وسوسـې راپاریـدلې تشـویش کـې وم چـې اوس بـه مـې کـور بمباروي او ګیهنټه پس به یې بمباروي

د چنـــار لانـــدې کیښناســـتم او د څرخکو دایرې ته مې کتل چې چیغې یـې شـروع کـړې ایتلافـي ځواکونـه راغلـي

ستاسـو پـه کـور عملیـات ترسـره کـوي لاسونه جیګ کړئ او بهر راوؤځئ

غـږ اوریـدو بانـدې مـې زړه ټکـان وخوړ

د دریم غـږ سـره یـې د کـور دروازه پـه چسـپکي مـاین والوځولـه د درز سـره امیر صاحب په مخابره کې غږ وکړ عزامه اورې! و عزامه عزام، عزام؟

کـرار غـږ مـې وروکـړ اورم امیـر صیب

ویـل غـږ ولـې نـه کـوې زمـا دې اندیښنه کړهٔ ژوندی یې؟

مال هو د کور څخه وتلی یم

ویل کشر ورور دې صباوؤن چرتـه وؤ؟

مال هغه کور کې وؤ

ویـل دعـاء کـوهٔ خپـل اختیـاط دې وکړهٔ زه هم درسره نیږدې یم که څه خبره وهٔ غږ راباندې وکړهٔ

ډاډ یـې راکولـو راتـه یـې ویـل اللـه تعالی به خیر کړي چاپـه ماتـه د خیبـر پـه کور ښکاري ته تشویش مکوهٔ

ځان سـره مُسـکی شـووم ورتـه مـې وویل سمه ده مشکل نشته ان شاءالله

د دوښمن رنګارنګ الوتکو بمبـارد شروع وؤ ټوله شپه درزار راتللو هیڅ مې سترګه پټه نکړهٔ

کله چې د دوښمن عملیات ختم شول نو حرکت مې وکړ کور ته، کور ته تر رسیدو وړاندې مې د مشق او عمبرو خوشبوۀ هېس کړله

زړه کې مې تشویش پیدا کیدو چې کور څخه به مې هدیره جوړه شوي وي او د کورنۍ ټول غړي به مې شهیدان وي زړه کې مې کرل ریبل خو چې کله کور ته راورسیدم د کور دیوالونه یې په بمونو الوځولي وۀ د کور څخه مې کنډر جوړ وۀ

کله چې د کور ته دننه شووم چې



کتل مې کمکي ورور مې صباوۏن لکه د چنار دنګ، ړنګ او بنګ په کټ کې پروت دی

نازنین بدن یې پرهرونو غلبیل غلبیل کړی وۀ

هیڅ مې د هغه په نازنین بدن پرهرونو ته د کتلو توان نه درلود

په تندي مې ښکل کړ او د شهادت تبریکي مې ورکړۀ

چې لږ مخته لاړم کتل مې چې د زړه درمان، د ملا تیر، راته ګران باباجان مې هم د شهادت جام نوش کړی او د کور په انګړ کې لکه مات چېنار پروت وۀ

شېبه وروسته مې طلحه څنګ ته راغلو راته یې وویل لالا ته چرته وې بېګا شپه په موږ څه تیر شول؟

ما ورته وویل ویریدلی خو به نه وې؟

کیسه یې راته شروع کړۀ

ویل کله چې کافران راغلل او زمونږ د کور دروازه یې والوځوله صباوۏن لالا مې ورووتو غږ یې ورته وکړ چې دلته طالبان نشته

چې طیارې ورباندې بم راخطاء کړو

ما ورته چیغه کړۀ چې صباوۏن لالا ژوندی یې

ویل هغه کرار غږ راوکړ چې هو روکیه ژوندی یم

پدې وخت کې صباوۏن زخمي وۀ بیا یې بم راخطاء کړو بابا مې شهید شوۀ، او صباوۏن بیا زخمي شوۀ صباوۏن غږ وکړ چې بابا زه خو بیا ولګیدم،

په دریم ځل بم چې خطاء شوو صباوۏن هم غږ ونکړ

بیا مې ډیر غږونه وکړل چا راته غږ نه کولو زه د بمبارد د ډاره د انګړ څخه وتلی وم او ګردونو کې پټ وم هیڅوک مې نه لیدل

کافرانو زمونږ کور ته بمونه کېښودل او ټول کور یې والوځولو

زه ډیر ډاریدم ته چرته وې؟

تاته مې غږونه کول چې ته به راته راشې خو ته هم نه وې

سترګو کې مې اوښکې راغلې د ځان سره مې وویل طلحه جانه! کاااش چې زه هم کور کې وی او شهید شوی وی، چې د صباوۏن دا ړنګه بنګه ځواني او په مرمیو غلبیل بدن مې نه وی لیدلی.

# د شهید مولانا سمیع الحق یو ارمان پوره

## او یو نیمګړی پاتې شو!

م اصف "کرار" حقاني

داسلامي نړۍ ممتاز او پیاوړی عالم شیخ الحدیث مولانا سمیع الحق د نړیوالې جامعې «دارلعلوم حقانیه» مهتمم او سرپرست و، نوموړی نه یوازې، د جامعې چارې پر مخ وړې بلکې له دغه ستر مسؤلیت سره سره د یوه مذهبي اوسیاسي تنظیم «جمیعت علماء اسلام» (س) مشري هم په غاړه لرله،

نوموړی زما د نبوي احادیثو مهربانه استاذ و، د ژوند ډېرو خاطرو یې زما په زړه کې ځای نیولی؛ خو زه یې یوازې د یوې خاطرې یادونه کوم:

شهید مولانا سمیع الحق تقبله الله تېر کال په همدې ورځو کې دپاکستان ټولې سیاسي ډلې او ګوندونه رادعوت کړې ول، د دوی په اصطلاح (ال پارټیز کانفرنس) یې جوړ کړی وه، د مجلس اجنډا او موضوع د امریکا د ولسمشر "ډونل ټرمپ" د هغو خبرو په غبرګون وه، چې په حرمینو شریفینو یې د حملې څه خبرې کړې وې، غونډه هم د تحفظ حرمین شرفین تر عنوان لاندې منعقده شوې وه،

مونږ (د مجلس انتظامیه) په ملتیا یوه ورځ مخکې اسلام آباد ته ولاړو،

حضرت شیخ تقبله الله ۱۱ بجې تشریف راوړ، د مجلس انتظام له نظارت او لیدنې وروسته، د هوټل خوندې خونې ته راغی، له لږ ارام او استراحت وروسته، یې مولوي یوسف شاه ته وویل:چې څو ورځو نه هغه امریکۍ ژورنالسته د (کرستین سمیر) په نوم راسره اړیکه نیسي، که راغلی وي اجازه ورکړه چې راشي،

ژورنالسته راغله، له ښه راغلاست څخه وروسته یې له مولانا صیب نه وپوښتل: چې حضرت د دارلعلوم حقانیه تاریخ راته بیان کړه؟

مولاناصیب: دار العلوم حقانیه زمونږ والد ګرامي خدای بښلي مولانا عبدالحق رحمه الله په کال ۱۹۴۷ کې دبنسټ ډېره کېښوده، نوموړي خپل ټول ژوند د جامعې خدمت ته وقف او بښلی و تر مرګه یې خدمت او مشري وکړه، د هغه له مېړنې وروسته زه د جامعې خدمت کوم،

ژورنالستې بیا راغبرګه کړه: مولانا صیب حقاني څه معناده ؟

مولانا صیب: د حقاني نسبت د حق لور ته کیږي، د حقاني نسبت دارا لعلوم حقانیه ته کیږي او د حقاني نسبت د مولانا عبدالحق لور ته کیږي، نو کوم طالبعلمان چې له دارالعلوم حقانیه نه فارغ او د احادیثو سند تر لاسه کړي هغوی دې نوموړې جامعې ته د نسبت په خاطر له ځان سره حقاني لیکي،

له پوره مرکې وروسته یې له مولانا صیب نه اخیرنۍ پوښتنه دا وکړه:

چې تاسو په ژوند کې کوم ارمان لرئ؟

مولانا صیب:

لومړی مې په ژوند کې تر ټولو ستر ارمان شهادت ده.

دوهم ارمان مې د هغې لیکنې تکمیل ده چې د تفسیر لاهوري په نوم مې د قران کریم تفسیر پیل کړې تر دې دمه مې د اوه ویشتو سیپارو تکمیل کړی دی.

خو ناترسه او بې رحمه دښمن محترم شیخ صیب د ارمانو تکمیل ته پرې نه ښودل، دعلم او عرفان مجسم غر یې د تل لپاره د ابد په خوب ویده کړ.

نو د شهید استاد تقبله الله لومړی ارمان پوره او دوهم یې نیمګړی پاتې شو!

روح دې ښاد او یاد دې تل تازه وي

# نفوذي تکتیک

## هم بدیل لرلی شي !

ص صارم

داشغال له پیل نه چې کله امریکایانو په شاهي کوټ کې کلکه ضربه وخوړه له هماغې ورځې یې له طالبانو سره په مخامخ جګړه کې له ډېر احتیاط څخه کار اخیست او څومره یې چې جګړه ایزو تکتیکونو بدلون موند ، ترډېره یې پکې دځان ساتنې تدبیرونه کارول ، ورځ تربلې یې شګلن بوجونه او سیمټي دیوالونه اوچتېدل، تردې چې ویې کولای شول ځانونه ترخپلو مرکزونو محدود کړي او څومره مرګ ژوبله چې داخلي عسکروینې دوی یې ونهویني .

خوداچې داشغال په وړاندې مجاهدین ډېر حساس دي اوپه روانه ټوله جګړه کې دجګړه ایزو تکتیکونو د ادلون بدلون ابتکار ترپایه طالبانو په خپل لاس کې اخیستی ٥ داشغالګرو ددغه مصؤنیت چاره یې هم په یوه داسې مؤثر تکتیک سره وکړه چې هغوی یې دبدیل هیڅ لاره چاره نه لرله ، دغه تکیتک ددښمن په لیکو کې دنفوذي کسانو دپیداکولو څورا پیچلی تکیتک و ، چې له کلونو کلونو یې امریکایانو چاره ونه کړای شوه او ډېر درانه تلفات یې ترې ولیدل .

په دې وروستیوکې د کندهار، هلمند او شینډنډ دپېښو په رامنځته کېدو سره یې بالاخره دې چارې ته سر ټیټ کړ او ترې دځان ساتنې په غرض یې زور له خپلو ملاتړو وکېښ، چې په ترځ کې یې " غوڅ ملاتړ" ډېر نیمګړی شو او د غوڅ ملاتړ!

ویاند ډګروال کناټ پیټر وویل له دې وروسته په امریکایي پوځیانو بندیز دی چې له کابل چارواکو او عسکرو سره وویني اویامخامخ خبرې ورسره وکړي، بلکې دای میل له لارې به ورسره تماس نیسي اوکه ډېر ضرورت و دامریکایي پوځیانو مرکزونو ته به غوښتل کېږي .

داشغال له پیله دوی په دې پوه نه شول چې په هیڅ صورت هم په دې خاوره کې نه منل کېږئ! لکه څنګه چې مجاهدینو ستاسو دهر نوي دفاعي تکتیک او نوي تکنالوژۍ په وړاندې لامؤثر تکتیک ایجاد کړی ٥ همداسې به ستاسې له دغو بندیزونو نه په استفاده ډېر مؤثر بدیل ترلاسه کړي ان شاءالله او دا ورسره دالله تعالی رښتونې وعده هم ده ، الله ﷻ په خپل کتاب قرآنکریم کې فرمایي ( ...او هغوی چې زمونږ په لارکې جهاد کوي خامخا به ورته خپلې لارې چارې ور ښایو ، له شک پرته چې الله پاک له نیکي کوونکو سره مل دی ...)[عنکبوت سورت٦٩]

شاید امریکایانو دافکر کړی وي چې له افغاني عسکرو او مامورینو سره له مخامخ کتنې سره په انکار یا بندیز کې به یې تلفات کم شي او داکار به دوی ته ګټه وکړي، خو دکارپوهانو په اند ددغو فاصلو په زیاتېدو سره به جګړه نوره هم پیچلې اوله خنډونو سره مخ شي، ځکه هغه شفقت اوکرم چې امریکایان یې

# امریکایي فوځ د افغانستان په جنګ کې له ویاګرا ګولیو څخه څه ډول کار واخیست؟

اسدخیل

د امریکې پخوانیو نظامیانو د وینا په اساس امریکایي فوځ د ۲۰۰۱ کال په پیل کې د طالبانو پر مرکزونو د یرغل پر مهال له هغه جادو ته ورته وسیلې نه کار واخیست چې د نارینه و سره په جنسي طاقت کې کومک کوي . دا وسیله د ویاګرا ګولۍ دی چې دجنسي طاقت په لوړولو کې ښه اغیز لري.

واشنګټن پوست امریکایي ورځپاڼي د یوه هغه نظامي څخه چې د افغانستان په جګړه کې یې ګډون کړی په نقل قول سره لیکلي چې څنګه یې د یو څو دانو برېښ رنګه ګولیو په عوض کې د طالبانو په اړه پوره معلومات ترلاسه کړل

هغه خوشبخته چې د ویاګرا ګولۍ یې ترلاسه کړې یو شپېته کلن افغان قومي مشر دی چې څلور میرمنې لري، د مرکزي استخباراتو ارګان یوه ضابط ورته یو پاکټ ډالۍ کړ چې ٤ دانې ویاګرا ګولۍ پکې وې.

ضابط ورته وویل: د دې پاکټ نه یوه دانه استعمال کړه خوښه به دې شي.

ضابط وایې چې ډالۍ ورپیا نه وه، د جادو په څېر اغیز یې درلود، او هغه داسې چې دغه سپین ږیری ٤ ورځې وروسته بیا راغی چې د ځوانۍ ښې ورباندې ښکاره شوي وې.

پرته له دې چې ضابط ورنه د اغیز په اړه د معلوماتو پوښتنه وکړي، سپین ږیری پخپله د طالبانو د رازونو په هکله چې څه ډول د هغوی هستوګنځایونو او قوماندانیو ته ور رسیدای شي د څرنګوالي په اړه د سیلاب په څېر معلومات ورباندې کړل خو په عوض کې یو شمیر د ویاګرا نورې ګولۍ وغوښتې.

دا پیښه د امریکایي فوځ د تازه نوښتونو لارو چارو ته اشاره کوي، چې له دې لارې د هغو هیوادونو په اړه معلومات ترلاسه کوي چې غواړی نظامي یرغل پرې وکړي، دا طریقه د پخوانیو هغو مروجو طریقو پر خلاف ده چې جاسوسان به په پیسو اخیستل کیدل.

د ویاګرا ګولیو تر څنګ یې د غیر مروجو ډالیو یو لیست چې امریکایي استخباراتي چینلونو تیار کړی څو سیمه ایز لاسپوڅي پری تابع کړي، چې له جملې نه یې د څه سامان، درمل، او د جراحي عملیاتو کول، د ماشومانو د لوبو سامان او د ښوونځی سامان آن چې د سفر پاسپورتونه پکې وو هم ورکول.

د مرکزی استخباراتو د ارګان یو پخوانی هغه مسؤل چې په افغانستان کې یې کار کړی وایې: شونې ده چې اغیزمن ملګري د ښوونځیو د جوړولو او د ویاګرا ګولیو د ورکولو له لارې ومومې.

په افغانستان کې د اوږدې تجربې په اساس امریکایي نظامي مسؤلین په دې عقیده دي چې پر ځای د دی چې چاته یو زیات څه ورکړی، کولای شي قبایلي وګړي وپیري چې ځینو له امریکایي فوځ سره کار کړی او ځینې نور له طالبانو سره دی.

په خپلو افغاني عسکرو او استخدامي مامورینو مخامخ لري په غیاب کې یې توقع نه شي کېدلای . دغه راز دخپلو بادارانو په وړاندې دافغاني عسکرو نفرت او واټن هم زیاتیږي چې په دې صورت کې هیڅکله دغه بندیزونه ددوی متوقع نتیجه په لاس نه شي ورکولای او چانس بیا طالبانو ته په لاس ورځي او دنفوذي تکتیک لانبه بدیل ورته برابرولی شي .

پرجګړه د ټینګار پایله همداسې وي، له امریکایي اشغال وړاندې اودیرغل په پیل کې دافغانستان دوخت حکومت امریکایانوته په ډېر اصرار وویل چې مسئله به دخبرو اترو له لارې حل کړو، جګړه د دوارو لوریو په ګټه نه ده، خو دامریکا دهغه وخت حکومت دې خبرې ته هیڅ اعتناء نه کوله، تر دې چې جګړه دادی اوولسو (۱۷) کلونوته ورسېده او تردې دمه په امریکاکې درې ځله حکومتونه بدل رابدل شول خو جګړه بریالۍ نه شوه .

ما درته ویل، منل دې نه و

دکوندې زویه اوس وهه دچول مزلونه

صفي الله "رائد"

# د شهيد مولوي سيف الله "خالد"

## ژوند او کارنامو ته لنډه کتنه

دا چې د اسلامي امارت صف تر ننه پورې داسې واحد او متحد پاتې شوی، ستر علت يې همدا دی، چې دوی له مشره تر کشره، له رهبره تر عسکره ټول په الهي مينه مست او د شهادت په انتظار دي او دغسې مرګونو ته لبيک وايې.

دا چې مرګ څه نوی شی نه دی او نه هم طالبان په خپلو صفونو کې په لومړي ځل له داسې سختو فراقونو سره مخکېږي، بلکې تر دې وړاندې يې هم په ډېرو سختو حالاتو کې ډېر نور مخکښ مشران له لاسه ورکړي.

د ميدان ښار جلريز ولسوالۍ اتل شهيد مولوی سيف الله خالد تقبله الله نه خو د طالبانو په صف کې لومړی شهيد دی او نه به هم اخرينی شهيد وي؛ اسلامي امارت د خپلې شرعي وجيبې له مخې د اسلام په دفاع کې تر دې سترو قربانيو ته تيار دی او وي به ان شاءالله.

ياد غښتلې ټولې د خپلو مشرانو په شهادتونو خفه نه، بلکې په شهادتونو يې وياړي؛ ځکه چې د شهيد په وينو صف پياوړی کېږي. شهادت سره صف لا ګڼدی کېږي.

هو! شهادت هغه مينه ده چې د ډېرو زړونو مينې پکې رانغښتي.

شهادت: هغه ستره هيله ده چې لاهم د ډېرو تنکيو ځوانانو هيلې او آرمانونه پورې تړلي.

شهادت پدې تنکيو مستشهدينو دومره ګران دی چې آن اورونو ته وردانګي.

نه غواړي، بل هېڅ نه غواړي! مګر شهادت غواړي؛ شهادت يې ارمان، شهادت يې مرام وي او خپل مرام ته ځان رسول غواړي.

هو! شهادت: يوه داسې ښکلې ډالۍ ده چې رب جل جلاله يې يوائې خپل نازولي بنده ته ورکوي .

چې دا دی نن د هغو نازولو په کتار کې د شهيد خالد تقبله الله نوم هم وليکل شو .

شهيد مولوی سيف الله "خالد" تقبله الله د شهيد مولوی بادام ګل ځوی په ۱۳۶۲ کال د ميدان وردګ ولايت جلريز ولسوالۍ د زيولات خدرخيلو کلي کې زېږېدلی.

دا چې له کتاب سره يې بې کچې مينه درلوده نو له همدې امله يې د عمر ډېره برخه په تعليم او تعلم کې لګولې وه .

د عصري علومو سربېره يې دالله تعالی سپځلی کتاب (قران عظیم الشان هم پـه زړه کـې ژونـدی ستاتلی و. د قـران کـریم د حفظ سره سره يې په فنونو کې هم خپله تنده خړوبه کړې وه.

شهید خالد تقبله الله په دوه زره او شپږم(۲۰۰٦)ء کال کې له جامعه حقانیه اکوړه خټک مشهورې مدرسې څخه د بخاري شریف سند تر لاسه کړ .

څو کاله پرلپسې يې په مختلفو مدارسو کې د فنونو تـدریس هم وکړ، چې په دې وروستیو کلونو کې يې د امریکایي یرغلګـرو او دهغوی لاس پوڅو ګوډاګیو سره په ګرمو سنګرونو کـې ښکېل او په دې بهیر کې د زیاتو مصروفیتونو لـه کبلـه درس او تـدریس ترې نیمګړی پاتې شو؛ د میدان ښـار دنګـو غرونـو تـه راغـی او د هیواد د آزادۍ توره يې په لاس کې واخیسته.

شـهید قـاری سـیف الله خالـد د اسلامي امارت تـر قیـادت لاندې یو له مخلصو او زړورو اشخاصو څخه ګڼل کېده .

تل به يې په خپله خاوره د اسلامي نظام حاکمېدل یـو لـوی ارمان یاداوه .

خالد چې څومره ما پېژانـده، پـه خپـل هـدف کـې خـاص او خدای جل جلاله ته یو راست انسان و.

څلور کاله پرلپسې د خپلې (جلریز) ولسوالۍ نظامي مسئول پاتې شوی و.

کله چې څلور کاله وړاندې د اسلامي امـارت لخوا د جلریـز ولسوالۍ لپاره نظامي مسئول وټاکل شو، په همدې کال کـې يـې د يـادې ولسوالۍ پـر پوسـتو پـراخ بریدونـه تـر سره کـړل چـې پـه نتیجه کې يې شاوخوا ۱۲ پوستې فتحه او ګڼ شمېر مهمات چې څو رنجر موټر او ټانګونه هم پکې و د غنیمت په توګه ونیول .

دا چـې شـهید خالـد تقبلـه الله اسلامي امـارت او اسـلامي نظام ته یو وفادار شـخص و، د دویـم کـال لپـاره يـې یـو وار بیـا د میدان وردګو ولایت په تشکیلاتو کـې د جلریـز ولسوالۍ دنظـامي مسئول په حیث نوم ولیدل شو.

د دویم کال له لاسته راوړنو له جملې يې یو د سه کلا سـیمه له اربکیانو په مکمله توګه پـاکول و، چـې ټـول پـه ټولـه د اسـلامي امارت مجاهدینو ته په لاس ورغله.

خالد د دریم کال لپاره بیا هم پخپل ځای برقرار پاتې شو .

هو! خالد د خالد بن ولید یو ریښتینی لاروی وو او د خالد بـن ولید په څېر يې یو ځل بیا په دوښمن کارنده بریدونـه پیـل کـړل او وحشي دښمن ته يې یو ځل بیا د سر په کاسـه کـې اوبـه ورکـړې، ګڼې پوستې او سـیمې يـې د دوښـمن لـه پلیتـو قـدمونو ور پـاکې کړې.

سرکال خالد قاری صاحب پـه خپلـه ولسوالۍ کـې د څلورم ځل لپاره بیا هم نظامي مسئول وټاکل شـو، چـې تـر کـوچني اخـتر وروسته يې یو ځل بیا په ګڼو پوستو او بېزونـو بریدونـه پیـل کـړل چې په پایله کې يې د خوجه صـیب لـوی بېـز او شـاوخوا څـوارلس نورې پوستې فتحه شوې او ګـڼ شـمیر مهـمات يـې لـه دوښـمن څخه تر لاسه کړل، چې درې غټ ټانګونه او څـو رنجـر مـوټر هـم پکې شامل وو .

سـیف الله قـاری صـاحب یـو بـا اخلاقـه، ځیـرک او خنـدنی انسان و، داسې انسان چې تل بـه يـې خبـرې پـه خنـدا او مسکا پیلولې، د مجلس او خبرو سړی و .

دا سپېڅلی غمی له ډېره وختـه د مکـار دوښـــــمن تـر څـار لاندې و؛ ځکه دوی غوښتل چې دا پاکیزه غمـی مـات کړي؛ځکـه چـې د همـدې پـاکېزه غمـي شـعاو يـې سـترګې بربښـولې او سوزولې.

چې بلآخره د یکشنبې په ورځ د صفرالمظفر د میاشتې په ۱۹ تاریخ د غزني ولایت د شلګر په ولسوالۍ کـې د یرغلګـرو کـافرانو له لوري د ډرون په ناځوانمردانه برید کې د همدې ولایـت د مرکـز میدانښار له نظامي مسئول سره یو ځـای د شـهادت لـوړ مقـام تـه ورسیدل.

د شهید مولوی سیف الله خالد تقبله الله هجـر کـه څـه هـم دروند دی، مګر دا چې د الله تقدیر دی، مونږ پرې راضي یو، هغه سپېڅلی انسان په ریښتیا چې یواځې له شهادت سره جوړېده.

نحسبه کذالک والله حسیبه

# د طالبانو سیاسي نوښتونه
# او نوي پرمختګونه

سعد کتوازی

طالبان له زړه خبره کوي خو ځيني يې له وچ تعصبه يا مني نه او يا يې هم په منلو کې له وخته اوړي، کله خو يې ۱۸ کاله وروسته هغه وخت مني چې د هغې په وړاندې يې ټول زور اوبه شوی وي، د طالبانو مشر مرحوم ملامحمد عمر مجاهد لا هغه وخت د ټکو له پلوه ساده او واړه خو د مانا له پلوه د تند او دروند اخطار په توګه اشغالګرو ته د سولې وخت ټاکلی و چې وروسته به بيا تاسو راپسې ګرځئ چې چېرته سره کښنو، او بيايې د اشغالګرو له ليږ ټکولو وروسته د قطر په دوحه کې د خپلو سياسي چارو د واحد ادرس په توګه د د فتر فعالولو ګام واخيست او د ((چېرته سره کښنو)) اړ تيا يې هم له منځه يوړه، بس همغسې وشول او اشغالګر کټ مټ په همغه وخت او ادرس طالبانو ته راغلل.

خو دا چې ملاصاحب د کوم موجه لامل يا کوم مصلحت له وجې د خپل ژوند تر پايه دا ونه ويل چې بيا به هم زموږ له هغو مشرانو سره کښنې چې دوی په خپل لاس تعذيب کړي، تو هين کړي او په خپلو وحشي زندانونو کې له بشري حقوقو کاملاً بې برخي کړي او لېرې ساتلي وي، نو د ګوانتانامو څخه ازاد شوي پنځه پخواني طالب مشران د سياسي دفتر غړي او د طالب ډيپلوماټانو په توګه ټاکل د مشر ملاصاحب هماغه رښتونې او ارزښتمنه وړاندوينه پوره کوي چې د محترم اخندزاده صاحب د مدبرانه مديريت څرګندوی دی.

عاليقدر اخندزاده صاحب په دې سره که له يو لوري د طالبانو د غښتلي انسجام، هر اړخيز ځواك او لوړ برم ښکارندويې کوي له بل لوري يې نړۍ ته دا هم وښوده چې د طالبانو لوړ پوړي او ټيټ پوړي منسوبين د دين د سرلوړۍ ، د هېواد او مسلمان ولس د ازادۍ په لاره کې په اور لولپه کېدلو، زندانونو او د تاريخ تريږلو سترو وحشتونو ته لاهم د يوې راتلونکې او تېرېدونکې مرحلې په توګه ژمن دي، هېڅ ترې ستړي کېږي نه او نه يې دغه ستونزمن پړاونه تګلوری او تګلاره بدلولای شي.

له ګوانتانامو د يادو پينځو مشرانو له ازادېدو وروسته به ځيني اشخاصو دا اټکل کړی و چې ګني دوی به نور د طالبانو په ليکو کې د مخکې په څېر رول و نلري يابه نه غواړي کوم رول ولري،...، خو په دې وروستيو کې د مشرتابه له لوري په يو داسي نازك پړاو کې چې طالبان ترې تېرېږي د سياسي او ډيپلوماټو غړو په توګه په هسك پوسټ د هغوی ټاکنه جوتوي چې د جهادي بهير له هرځومره په لوړه کچه بدلونو او ورکې نويو ابتکارونو رامنځته کېدلو سره بيا هم هغوی د نړۍ په وړاندې حساسي سياسي جګړې مديريت په مخ بېولای شي او خوښي ښيي چې له پخوانيو سترو ستومانيو او د زندان د سترو وحشتونو ګاللو وروسته هم د خپل ولس او مسلمان ملت د ازادۍ په لاره کې د دغه درون بار وړ تيا لري، په غاړه يې وړلای شي او اوبه ور کوي.

له دې څخه نږدې اوني وړاندې د محترم ملا عبدالغني برادر اخند ازادېدل که څه هم رسنيو د پاکستاني چارواکو په حواله ويلي و چې د خليلزاد او د قطر دولت په استازيتوب د قطر د امير مرستيال او هم د بهرنيو چارو وزير محمد بن عبدالرحمن ال ثاني په غوښتنه او منځگړيتوب و او ځيني طالب پلوه ليکوالانو هم ورسره بدرگه کړه، خو طالبانو په خپلو رسمي اعلاميو کې په دې اړه هرډول واسطه او معامله رد کړل.

په رسنيو کې د محترم ملا برادر اخند ازادېدل، قطر ته يې تلل او د سولې په بهير کې د هغه رول له ټولو لوريو پراخ انعکاس او تحليل شول، طالبانو د يوې رسمي اعلامېې له درکه دا هم و ويل چې ملابرادر اخند ته د تېرو۸ کلونو په اوږدو کې بيا بيا ځلي د امريکايانو له خواه وړانديز شوی چې که د دوی له غوښتني سره سمي سولې ته طالبان اړ کړي نو ازاد به کړل شي، خو ملا برادر اخند د طالبانو په ليکو کې د يو والي د خوندېتوب او د هېواد د اشغال پای ته رسېدو په لاره کې د خپل ټول ژوند د ازادۍ تسلب ته او ليت او اولويت ور کړی، تر هر ځومره فشار لاندې بياهم نه له خپلي سپېڅلي داعيې نوك هومره تېر او نه هم د طالبانو د اسلامي امارت لوړو ديني او ملي ارزښتونو په سر کوم جوړ جاړي ته تيار شوی دی، د همدې دوامداره تعهد له برم او برکته يې په ټول ژوند هسکه غاړه وړې او له زندانه هم په هسکه غاړه او جگو سترگو را و وت.

د ملابرادر غوندي اجماع منځته راوړونکي، ستراتېژست، د اشغالگرو پروړاندې د تېرې ۱۸ کلني جگړې په گډون د طالبانو د مدريريت د تقريباً ټولو چارو مخکښ طراح او په هغه کې د محوري رول څښتن ازادېدل رښتياهم که له يوې خوا د طالبانو له لويو سياسي لاسته راوړنو بلل کېږي له بلې خوا سولې ته د لارې هوارۍ او باورجوړوني يو ستر او په زړه پوري گام هم دی، ملا برادر اخند چې له يوپلوه پوخ ډيپلومات او د مرکچي لوړه ملکه لري، له بل پلوه اوس پخواني همسنگران هم له اوږد او دردونکي بېلتون وروسته د پخواني وخت له زړو يادونو سره يوځل بيا په ډيپلوماتيکه برخه کې ور ملگري شول چې د يو شخص په رول ستر او بارز اغېز ښيندي، نو رښتياهم چې د سولې په بهير کې به له هغه لوړ کار وکړي چې تمه يې کېږي.

بل دا چې له دې وړاندې د طالبانو سياسي دفتر داسي چارواکي اوډيپلوماتان ښايې نه درلودل چې د يرغلگرو په کورني مزاج له نږدې خبر او په مستقيم تعامل کې په چلول يې تر نورو ښه پوهېږي، د پردې شاته او مرموزو موخو تدارك ورته اسان وي، په عنعنوي لحاظ هم د هغوی د ارزښتونو رؤيا تعبيرولای شي او...نو په سياسي برخه کې د دې نويو ډيپلو ماتانو ځايول يو ښه گام او په ډيپلوماسۍ کې له په زړه پوري اصلاحاتو څخه ده.

دغه راز هغه ځوك يې هم ښايي نلرل چې له سولې د گاونډيو هيوادو او يا هم نورو کړيو موقف او په هغې کې لاس لرل يوڅه ورته څرگند وي، نو په سوله کې د محترم ملابرادر په ونډه لرلو په دې نازك پړاو کې د گاونډيو او ياهم نورو اړخونو له لوري د طالبانو په ليکو کې د بې باورۍ رامنځته کولو، د هغو په سياسي پاليسي کې د سانسور او لاسوهنې او د سوله ايزو هلوځلو بې اغېزه کولو د امکان لچه تر يو بريده را ټيټېږي چې بايد د دې پړاو له پيل بيا ترپايه ورته جدي پاملرنه شوې وای او هم وشي.

له دربيم لوري د افغانستان د معضلې د ارزونې او د سولې راوستو په اړه د مسکو فارمټ رسمي ناسته چې د طالب ډيپلوماتانو د هيئت سربېره د۱۲ گاونډيو او ستراتيژيکو هېوادونو پلاو پکې گډون درلود د طالبانو يو بې سابقې نړيوال او بين المللي سياسي پرمختگ و، سوله چې د افغانانو يوه حياتي اړتيا او دغه ناسته يې په زماني او مکاني همدا رنگه د جوړښت په لحاظ يو غوره فرصت و، طالبانو د خپلي فعالي

ډیپلوماسۍ په کارولو ترې اعظمي ګټه پورته کړه او د افغان ولس د ځواکمنې ډیپلوماتیکې نمائندګۍ په وړاندې کولو سره یې وکړای شول له نږدې دوه نیمو لسېزو ځنډ وروسته په لومړي ځل د بین المللي کچې سیاست له لارې د افغانستان د ستونزې پای ته رسېدو او دلته د سولې او ټیکاو را وستلو له چارې د اشغالګرو هغه جګړه اېز او سیاسي انحصار غبرګ مات کړي چې له تېرې اوږدې مودې راسې یې په ځټه کې دې.

په دې ناسته کې طالبانو د خپل موقف او داعیې ټولې زوایا پراخې او هر اړخیزې را ونغاړلې، په بې ساري ساده توب، ستره توب، زړورتیا، د تعقل او منطق په معتدله او منځنۍ مستوا یې د خلکو د پوهاوي هڅه وکړه، د خپلې داعیې په اړه یې د جهانیانو اذهان تنویر کړل، له بین المللي دریځه یې خپل اندواند او اندېښنې په ډاګه کړې چې په سیمه اېزه او نړیواله کچه ځانګړی اغېز لري، له غونډې وروسته یې کانفرانسونه ور کړل او خبریالانوته یې په ښه جهوري او رسا لهجه و ویل چې: ((د روان کړکېچ په تړاو لومړی له امریکایانو سره خبرې کوي چې د جګړې اصلي لوری دی او دوی دي هم جرأت مندانه رامخکې شي، که امریکا پخپله خوښه له افغانستانه نه وځي نو موږ به یې په زور باسو)).

د تېر خلاف په دې غونډه کې د افغانستان د کشالې اصلي اړخونو طالبانو (طوعاً)، بهرنیانو +کابل اداري (کرهاً) اوهمدارنګه له دې کشالې اغېزمنو او تهدیدېدونکو د منځنۍ اسیا ستراتېژیکو هېوادونو ونډه درلوده، د لومړي ځل هغه بین المللي غونډه وه چې پکې طالب ډیپلوماټان برخه اخلي، طالبان له اوږدې انزوا وروسته یو ناڅاپه د بین المللي حیثیت په درلودلو د نړیوالو سترو قضایاو د یو قوي جهت په توګه ډیپلوماتیکې بین المللي سیالۍ ته له پوره نشاط -تابیا- قوي استدلال سره را وړاندې شوي، د امریکا هر اړخیز زیښښ ایستلو وروسته یې انحصاري چېلنجونه هم په ډېره بیباکۍ ماتوي، د وسلوالو او مطبوعاتي حیرانونکو بریاو وروسته د یو خپلواك نړیوال ځواك په توګه خپل سیاسي اوډیپلوماتیك اعداد او استعداد بین المللي ننداري ته وړاندې کوي او...هغه ټکي و چې له امله یې دغې غونډې له رسنیزو لارو د جهانیانو د شیبې شیبې توجه ځان ته جلب کړه او د غونډې ګډونوالو له پوره پاملرنې او لیوالتیا سره د طالبانو داعیه واورېدله او د هغې اخلاقي ملاتړیې وکړ.

نو که څه هم غونډه مقدماتي او د زیاتې تمې وړ نه وه خو اهمیت، ارتیا او وړتیا یې له ترسره کېدوسره سم ټولو کړیو او سوله خوښونکو هیوادونو او اشخاصو ته پوره جوت شول او له تمې پورته ګټوره او د پام وړ و ګرځېده، تر دې چې اشغالګر پکې په اضطراري ګډون او د کابل لاسپوڅي یې پکې په نه ګډون په پراخه کچه ملامت کړل شوي چې اوس د افغانستان سیاسي ګوندونه او مشرانو جرګه د کابل رژیم ته د پړ ګوته نیسي، خو د رژیم د دوهم سر لومړی مرستیال محقق ویلي چې د سولې شورا په نوم نارسمي پلاوی د غني هغه پټ استازي و چې مسکو غوښتی، کټونکې په دې اند دي چې غني د اشغالګرو د خولې بندولو او د لېږلې پلاوي د حتمي ناکامۍ رژیم ته راجع کېدو د مخنیوي ترځنګ د مسکو له بلنې سره سم خپل استازي د سولې نارسمي پلاوي په پوښښ کې لېږلي و، خو دا چې د سولې شورا خپله د ملي پیوستون رژیم غوښنه برخه او د هغه مرکچي لویه تشه ډکوي یاد پوښښ به د غه درد دوا نکړای شي.

طالبانو له واشنګتن سره د مسکو له رقابت او په بین المللي سطحه د روسیې له نفوذ څخه په ګټه اخیستنه هو بهو ځان نړۍ ته ور و پېژاند، د خپل نظام او راتلونکې طرحې یې ور په ګوته کړې او د اشغالګرو د تبلیغاتو په اثر په سیمه اېزه او نړیواله کچه پنځېدلو اندېښنو ته یې په نړیوال حضور ځواب و وایو، دغه راز طالبانو له دې لارې د اشغالګرو د جنګي ستراتېژۍ، مذهبي او سیاسي فشارونو، استخباراتي پرلتونو په شکل ټولنیز فشار، د

سولي او داسي نورو نومونو تبليغاتي کمپاين په بنه(چې پکې نيکولسن او ورپسې سکاټ ميلر را وپرځېدل) هر ارخېزې پنجه ازمايي په ګډاو د اشغالګرو هغه هڅې پڅي سرچپه او پر بل مخ واړولې چې غوښتل يې د خپل سياسي حل موقف پرې پياوړی او لوړ وځلوي.

خو که له دې سربېره مسکو د طالبانو او۱۲هېوادونو د حکومتي استازو ترڅنګ يوه ډله د افغانستان ازاد او مستقل سياسيون استازي او برطرفه مخور او نخبه اشخاص هم غوښتي وای له دې به هم په مراتبو زيات ګټور وای، او بيا په داسي حال کې چې د کابل رژيم ترې (په ښکاره خو)عقب نشيني وکړه مخه يې هم خلاصه وه، په هر رنګ د مسکو فارمټ ناسته چې د امريکا د ستر حريف په نووښت او د هغه په کور کې د افغان جګړې اصلي لوريو او د سيمي جيو پوليټيکو او ستراتيژيکو هيوادونو د پلاو په را ټولېدو کې په داسي حال کې تر سره شوه چې په همدې ارتباط امريکا د خپلو استازو ايلس ويلز او زلمي خليلزاد په لومړۍ او دوهمه پلا هڅو له طالبانو سره له نږدې د قطر په دفتر کې ليدلې، ليدنې يې بريالۍ ختلې، هيلي يې را ټوکولې او دريمه پلا بيا هم خليزاد د مسکو غونډې په ورځ په دولس ورځني سفر ورپسې راوتلی دی، له شك پرته د زمان، مکان او جوړښت له پلوه له خورا اهميته برخمنه وه او هم يې د بېته ورته نورو ناستو لاره پرانېزله.

په ټوله کې د طالبانو پينځه پخواني مشران بياځلي سياسي ډيپلوماټان ټاکل، د جناب ملا برادر اخند ازادېدل او د پنځو نويو سياسي مشرانو ترڅنګ يې د سولي هلي ځلي او د مسکو په ناسته کې د افغان سولي چاره د اشغالګرو له نظامي او سياسي انحصاره ايستل او د هغې بين المللي کول د طالبانو سياسي نوښت او نوي پرمختګو نه دي.

په افغانستان کې هر اړخيز وضعيت هم تر بل هر وخت ترينګلی او د طالبانو په ګټه په مخ روان دی، د طالبانو په لاس نږدې دوه اونۍ وړاندې په فراه کې د يوې چورلکې راغورځېدو او نږدې۲۵دولتي منسوبينو وژل کېدلو سربېره د جنرال جبار قهرمان، جنرال رازق، جنرال مومن حسن خېل، جنرال نعمت، قومندان فکور (۴نورو مهمو قومندانانو)، جنرال نبي الهام، قومندان ملارازق او لوی شمېر نورو قومندانانو او زرګونه بېلابېلو عسکرو، پوليسو او ملېشو وژل کېدو، په لويه پېمانه سپکي او درنې وسلو، نقليه وسائطو پوځي مهماتو ولجه کولو، په سمنګان کې د يوې مهمې قرارګاه، په فراه کې دوو لويو بيسونو، خاص روزګان کې د شجاعي سرکوبي او د هغه تر وروستۍ قراګا ټولو مراکزو، د غزني مالستان ولسوالۍ، د فراه خاکسفيد خوست نومي پراخي سيمي، د جاغوري او د هېواد په بېلابېلو ولايتونو کې پراخو سيمو سقوط، ګڼديو فتوحاتو او په خرپ تسليميو په شکل ګڼ شمېر پرمختګونه کړي او پاتې ټولي سيمي ګواښي چې په دې وروستيو کې په هېواد دننه او هم د باندې يې سخته ترهه او وارخطايي خپره کړې او له امله يې له جان نېکولسن وروسته د هغه غوره بديل!! سکاټ ميلر هم په خپلو ځرګندونو کې په ډاګه ويلي چې روانه جګړه پوځي حل نلري، ميلر چې د کندهار له خونړي بريد څخه روغ وتلی و او اوس ترټولو زياته وېره او ناوسي له نفوذي بريدونو څخه لري دا ځرګندونې په داسي حال کې کوي چې ايله دوې مياشتي راسي يې د ناټو د غوڅ ملاتړ ماموريت د مشرۍ چارې په غاړه لرلې خو نور ګان نکوي چې د جګړې له لاري به طالبان مات او بريا خپله کړي، دغه راز جنرال متيس هم ورته ځرګندونو کې کابل ادارې ته په اشاره ويلي له پامه يې نه دي وتلي خو د پوځي انخلاء سره که بياهم مرسته امکان ولري ورسره و به يې کړي، نو د افغانستان روان وضعيت هم له هره اړخه سولي ته جوړ، د سولي له چارې د بهرنيو حصار ماتولو او په هغې کې د ملابرادر اخند او پنځو نويو طالب ډيپلوماټانو مبتکر رول ته اړ دی.

# د رښتیني مجاهد صفات

لیکوال: م. عطاءالله مبارز

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمدلله رب العالمین والعاقبة للمتقین والصلاة والسلام علی اشرف الأنبیاء والمرسلین و علی من تبعم بإحسان إلی یوم الدین. وبعد:

دا خبره سمه ده چې د الله تعالی په لاره کې جنګېدونکی مجاهد په کور کې له ناست سړي څخه غوره دی، الله تعالی د مجاهد د فضیلت باره کې فرمایي:﴿وَفَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ أَجْراً عَظِيماً﴾

ژباړه: الله تعالی مجاهدینو ته په ناستو خلکو د ستر اجر په ورکولو سره فضلیت ورکړی دی.

خو مهمه داده چې هغه کوم ډول جهاد دی، چې الله ته دومره خوښ دی او ددومره ستر فضیلت او ډېر اجر لامل ګرځي، په دې لاره کې یوازې دښمن سره جګړه، زړورتیا او وسله چلول بسنه نه کوي، بلکې له دې سره - سره ځینې داسې مسؤلیتونه او مواصفات دي چې عملي کولو سره یې مجاهد کولای شي یادې نېکمرغۍ ترلاسه کړي، موږ به یې د ځینو مهمو یادونه وکړو:

**لومړی: اخلاص او للهیت:**

:الله تعالی دنیا کې انسانان او پیریان یوازې د خپل عبادت لپاره پیدا کړي دي، او هغوی یې مکلف کړي، چې په عبادت کې به څه نه ورسره شریکوي، همدا لامل دی چې اسلامي ښوونو په هر عمل کې د نیت خلوص مهم ګرځولی دی، حضرت عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چې ما له نبي کریم صلی الله علیه وسلم څخه واورېدل، ویل یې:

(إنمَّا الأعمالُ بالنيَّاتِ."الحدیث (بخاري: رقم الحدیث:۱)

یعنې د عملونو بنسټ په نیتونو ولاړ دی، هرچا ته د خپل نیت سره سم بدله ورکول کیږي.

د محدثینو د دې حدیث په تشریح کې لیکلي چې نیت له دوو وجو ډېر مهم دی: لومړی دا چې یو عمل له بل څخه د نیت په واسطه جلاکیږي، مثلا: فرضي لمونځ او روژه له نفلي لمانځه او روژې او داسې نور...

او دغه راز د عبادت او عادت ترمنځ توپیر هم د نیت په واسطه کیږي.

جهاد که له یوې خوا ستر عبادت دی او شریعت یې کوونکي سره د بېشمېره ثوابونو وعده کړې، له بل لوري د ریا، سمعت او داسې نورو ناوړه ناروغیو د شتون ویره هم پکې د نورو عبادتونو په پرتله زیاته ده، چې له امله یې شریعت په ځانګړي ډول جهاد کې د نیت په خلوص ډېر ټینګار کړی دی.

حضرت ابو موسی اشعري رضي الله عنه فرمایي: له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه د دریو کسانو په هکله پوښتنه وشوه:- لومړی هغه چې د دې لپاره جګړه کوي چې خلک یې زړور وګڼي، دویم هغه چې د قومي ننګ او غیرت له امله جنګیږي او بل هغه چې د ځان ښودنې په هدف جګړه کوي- چې په دوی کې کوم یو د الله په لاره کې دی؟

رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل:"څوک چې په دې نيت جګړه کوي چې د الله د دين کليمه لوړه شي، هغه د الله تعالى په لار کې دى."

وعن أبي موسى عبد الله بن قيس الأشعري - رضي الله عنه- قال: سُئل رسول الله ﷺ عن الرجل يُقاتل شجاعة، ويقاتل حميَّة، ويقاتل رياءً: أي ذلك في سبيل الله؟ فقال رسول الله ﷺ: " من قاتل لتكون كلمة الله هي العليا فهو في سبيل الله"(متفق عليه(

**دويم: د امير اطاعت:**

د شرعي امام اطاعت په رعيت باندې واجب دى، او روا نه ده چې د امير لخوا شوي حکم څخه مخالفت وشي، په خاص ډول مجاهد ته د خپل امير اطاعت خورا مهم دى، ځکه جهاد له اسلامي ارزښتونو څخه د دفاع په لار کې مهم حکم دى او په دې لاره کې لږ بې نظمي او بې، غوري هم کولاى شي مسلمانان له ستونزو او کړاوونو سره مخ کړي.

اسلام په دې هکله څرګند او واضح احکام لري، الله تعالى فرمايي:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ذَلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا [النساء:۵۹.[

ژباړه: اى مؤمنانو د الله تعالى، د هغه د رسول او خپلو اميرانو اطاعت وکړئ، او که په کوم شي مې ترمنځ اختلاف راغى، نو الله او د هغه رسول ته يې پيش کړئ، که په الله او د قيامت هه ورځ ايمان لرئ، دا (په الله او رسول محاکمه کول) خير دى او انجام يې ډېر ښه دى.

مشهور تابعي او مفسر امام مجاهد رحمه الله تعالى ليکي چې الله او رسول ته د فيصلې لپاره د خپلې شخړې وړلو څخه مقصد دا دى، چې قران او حديثو ته يې وړاندې کړئ.

له حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل :

"څوک چې زما اطاعت وکړي هغه د الله تعالى اطاعت وکړ، او چاچې زما نافرماني وکړه، د الله تعالى نافرماني وکړه او چا چې د امير اطاعت وکړ او چاچې د امير نافرماني وکړه، هغه زما نافرماني وکړه"

عن أبي هريرة رضي الله عنه، قال: قال رسول الله صلي الله عليه وسلم: "من أطاعني فقد أطاع الله ومن عصاني فقد عصى الله، ومن يطع الأمير فقد أطاعني ومن يعص الأمير فقد عصاني". أخرجه البخاري.

له پورتني حديث څخه په څرګند ډول د امير د اطاعت ارزښت معلوميږي، داسې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د امير اطاعت خپل اطاعت او د امير نافرماني خپله نافرماني ګڼلې ده.

د امير اطاعت د جګړې په ميدان کې لښکر منظم ساتي او د خپل منځي اختلاف او شخړو مخه نيسي، خو بالعکس د امير نافرماني لښکر بې نظمه کوي او ان کله خو د ماتې سبب هم شي.

د احد غزا چې له بشپړې بريا او سوبې وروسته په يو ډول صوري ماتې بدله شوه او لسګونو صحابه کرام رضي الله تعالى عنهم پکې شهيدان شول، يو لامل يې د رسول الله صلى الله عليه وسلم له لوري په (جبل الرماة) د مؤظف پنځوس کسيز غشي- ويشتونکي تولګي نافرماني وه، هغوى ته ويل شوي و، چې د بريا او ماتې دواړو حالتونو کې به خپل ځاى څخه نه راکوزيږئ.

کله چې ميدان د مسلمانانو په لاس کې ولوېد او کافران له ماتې سره مخ شول، دې غشي ويشونکو وليدل چې فتح د مسلمانانو په برخه ده او مسلمانان غنيمتونه راټولوي، د امير له منع سره سره يې سنګر پرېښود او ميدان ته کښته شول، يوازې د دې ډلې مشر- او لس کسه پاتې شول، کافرانو دا فرصت غنيمت وګاڼه او د حضرت خالد بن وليد- چې هغه مهال يې لا اسلام نه و منلى- په مشرۍ د سپرو يوې ګرندۍ

ډلې له همدې لارې په اسلامي لښکر سخته حمله وکړه. او ګټلې جګړه د مسلمانانو له لاسه ووتله .

**دریم: له عامو مسلمانانو سره غوره چلند:**

اسلام د عامو مسلمانانو د ځانونو، عزتونو او مالونو د ساتنې لپاره د وسلوال جهاد اجازه ورکړې ده، د عامو مسلمانانو سوکاله او خوندي ژوند د جهاد له مهمو اهداف څخه دی،

شریعت چې د یو مسلمان عسکر له لوري یوه ورځ د اسلامي سرحدونو ساتنه، له دنیا او پکې شته شیانو غوره ګڼلې، لامل یې دا دی چې نوموړی د عامو مسلمانانو د ځانونو، مالونو او عزتونو ساتنه کوي.

له عامو مسلمانانو سره غوره چلند د بریا ضامن دی، په کمه موده کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د بریالیتوب راز همدا و، چې له عامو مسلمانانو سره یې نرم چلند کاوه، د هغوی مشکلات یې رفع کول او په هر تصمیم کې یې له هغوی سره مشوره کوله، قران کریم د رسول الله صلی الله علیه وسلم د دې لوړ صفت یادونه داسې کوي:

فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللَّهِ لِنتَ لَهُمْ ۖ وَلَوْ كُنتَ فَظًّا غَلِيظَ الْقَلْبِ لَانفَضُّوا مِنْ حَوْلِكَ ۖ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ ۖ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِينَ.[ال عمران: ۱۵۹]

ژباړه: ته د الله تعالی په فضل سره دوی ته نرم یې، که چېرته سخت ژبی او سخت زړی وی؛ نو دوی له تا تللي وو، ښښنه ورته کوه او له الله تعالی هم ښښنه ورته غواړه، مشوره ورسره کوه او کله چې د یو کار تصمیم ونیسې په الله توکل کوه، بېشکه الله تعالی له توکل کوونکو سره محبت کوي.

په دې ایت کې الله تعالی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د بریا راز په ګوته کړی، چې له خلکو سره نرم او غوره چلند دی، او دوه ناوړه صفتونه: تېز ژبانې او سخت زړي یې د ناکامۍ او انزوا لاملونه ګڼلي دي، دغه راز یې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د عامو مسلمانانو د زړونو ګټلو یوه طریقه هم ښودلې ده، چې په کارونو کې دې له هغوی سره مشوره کوي او په پای کې یې په الله تعالی د بروسې او اعتماد لارښوونه کړې ده.

که څه هم په دې ایاتونو کې خطاب رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دی، خو د نورو احکامو په څېر دلته هم حکم عام دی او ټول مسلمانان او په ځانګړي ډول د مجاهدینو مشران باید له دې ایتونو څخه ډېر څه واخلي او له عامو خلکو سره ډېر نرم او له محبت او خیرخواهۍ ډک چلند او روش اختیار کړي.

په خاص ډول زموږ د ملت وګړي ډېر مخلص، دینداره او خدای پرسته خلک دي، د عالمانو په وینا یې د انګریزانو، روسانو او دا دی نن د امریکانو خلاف هر ډول قربانۍ ورکړې او لا ورکوي یې، د مجاهدینو او مشرانو له لوري نرم چلند او ښه برخورد کولای شي، د ملت له لوري شته همکاري څو برابره کړي.

## معاصر جهالت

الجزیرې نړدې میاشت ورانډې راپور ورکړ، چې هند غواړي څو میلیونه مسلمانان له دې جغرافیې وشړي، له څو میلیونو نورو یې هندي تابعیت بېرته واخلي .

امریکا غږ وایي، دوه اوونۍ وړاندې یې د مسلمانانو د طلاق په اړه هم ویلي، چې دا د هند له قانون سره سمون نه خوري، هندي چارواکو ویلي، چې مسلمانه مېرمن د مېړه له خوا په دریو طلاقونو نه طلاقېږي.

تېر سپټمبر میاشت کې دې هېواد همجنسبازانو ته قانوني جواز ورکړ او د هغوی تر منځ جنسي اړیکي یې جرم نه بولي؛ تازه یې حکم کړی چې نور نو زنا عادي کار دی پولیسان دې چاته نه مزاحم کېږي.

دوی وایي دا د یوې ښځې په حق کې زیاتی دی، چې یوازې له یوه سړي سره جنسي اړیکي وساتي.

دې ته وایي #معاصر جهالت

# گلخونه

## نعت شریف

عقابي جانان

زمونږ پیشوا، زمونږ لاربښود، زمونږ رهبر محمد
په مرسلانو کې سلطان خیرالبشر محمد

بابا ادم او د حوا لا هیڅ وجود هم نه وو
الله خپل نوم سره لیکلی په عرش بر محمد

دا د یو لاک څلورویشت زره انبیاو امام
اول اخر دی زمونږ د مینې پیغمبر محمد

الله هر چاته خپل مقام او مرتبه ورکړي
خو دی په ټولو کې ممتاز اول نمبر محمد

په اشاره باندې یې سپنه سپوګمۍ دوه ټوټې کړه
د معجزاتو مجموعه ده جلوه ګر محمد

چې یې له رویه صحابه شول مقتداء د امت
صدیق اکبر، حضرت عمر، عثمان حیدر ، محمد

عُقابي هیڅ توان نه لرم چې یې صفات ولیکم
دی د صفاتو، کمالاتو سمندر محمد

## غزل

څو به ستا جفا کاږه کاته لیکم
وخته! ستا د غم پیټي درانده لیکم
هم انتخابات کړي هم یې نه مني
مشر ته میالي صیب (*)ته ورتله لیکم
هغه هالیندي سپي ته همدا ځواب
نوم د مدینې جانان په زړه لیکم
زیرمې مې د اوښکو جوړې ختمې شوې
اوس به د وطن غزل په څه لیکم؟!
لا هم چې اشغال ته اشغال نه وائي
هغو ته ډوډۍ پر ځای واښه لیکم
ستا ناز او خندا بلخوا رقیب موذي
څرنګ له خوږو سره ترخه لیکم
سپی مخ، توري زلفې اضداد جمع شوه
ځکه خو رڼا سره تیاره لیکم
دین وطن یې لاړه خو دوی زغم کوي
حال د بیغیرته پښتانه لیکم
پل دټولو غلاو ستا محل ته ځي
بس دی بي بي ګلې! نور یې نه لیکم

* * *

# حفیظ الدین

(*) میالي= میا علي صیب، ننګرهار کې د لیونو زیارت

#مولانا جلال الدين_الرومی #بلخی

ای زبان هم آتش و خرمن تویی
چند این آتش دراین خرمن زنی
ای زبان هم گنج بی پایان تویی
ای زبان هم درد بی درمان تویی




د فتحې وخت قریب د الله نصر په راتلو دی
جانانه وار خطا نه شې سهار په راختو دی

مظلومه ستا فریاد او آه تر عرشه رسیدلی
د اوښکو سمندر کې دې فرعون په ډوبیدو دی

مومن نظام به راشي، ته د صبر لمن نیسه!
مرام د آزادۍ ته مو ارمان په رسیدو دی

پردیو چې راوستی دی، پردو سره به تښتي
تا نه دي اوریدلي، پردی کټ تر نیمو شپو دی

کیسه د ابابیل او ابرهه دلته تکرار شوه
که نه چرته دا خر طالب له زوره د ناتو دی

دریغ دې اسلامي دی، کلک ولاړ ور باندې اوسه
همدغه خو توپیر ستا او د نورو پرګنو دی

فریب د زمانې کې پام چې لاره ورکه نه کړې
کاروان د شهیدانو مو مشال د منزلو دی

اذان د استقلال ته بلال خپله را روان دی
تکبیر د مجاهد ځکه د غرونو له سرو دی

اشغال په ملا مات شوی اوس د تیښتې ګودر ګوري
حفیظ خو سر له اوسه پروت د شکر په سجدو دی

# شعر

شاعر: یحیا جواهری

بی‌تو نگاهِ آیینه مغشوش می‌شود
شعر سپید، بی‌تو سیه‌پوش می‌شود

خواهی بیا و خواه نیا؛ هر چه میل توست
این شمعِ آخر است که خاموش می‌شود

در اتفاق‌های بد و خوب، فکر کن!
آدم چقدر زود فراموش می‌شود!؟

جز عشق هر چه بار گران است واگذار!
عاشق به این بهانه سبک‌دوش می‌شود

هر شب به یاد گم‌شده‌اش یک‌نفر چو من
از دور با ستاره هم‌آغوش می‌شود

تو خورشیدی و یا زهره و یا ماهی نمی دانم
وزین سرگشته مجنون چه می خواهی نمی دانم
در این درگاه بی چونی همه لطف است و موزونی
چه صحرایی چه خضرایی چه درگاهی نمی دانم
به خرمگاه گردونی که راه کهکشان دارد
چو ترکان گرد تو اختر چه خرگاهی نمی دانم
ز رویت جان ما گلشن بنفشه و نرگس و سوسن
ز ماهت ماه ما روشن چه همراهی نمی دانم
زهی دریای بی ساحل پر از ماهی درون دل
چنین دریا ندیدستم چنین ماهی نمی دانم
شهی خلق افسانه محقر همچو شه دانه
بجز آن شاه باقی را شهنشاهی نمی دانم
زهی خورشید بی‌پا...

# د مسکو کانفرانس او خارجي میډیا

واحد فقیر

واشنګټن پوست د نومبر پر ۹ لیکي مسکو یو کرت بیا غواړي چي په «ستره لوبه» کي ور داخل سي. د روسیې خارجه وزیر لاوروف پخپله افتتاحه وینا کي وویل،«روسیه غواړي چي د افغانستان ارضي تمامیت وساتي، او یو داسي افغانستان ووینی چي هلته ګرده ساکن اقوام په امن او خوشحالي کي ژوند سره وکړي.» هغه زیاته کړه،«روسیې دا غونډه سمبال کړې ده، او غواړي چي د افغانستان په سوله کي رغنده نقش ولري«.

واشنګټن پوسټ لیکي دا مجلس د مسکو په یوه هوټل کي وسو. او د کانفرانس فضا دوستانه، خوشحاله، او د جشن غوندي ښکارېده.. طالبانو شینې چاي څیښلې، او کوربه کافي څیښله.

طالبانو پخپلې اعلامیې کي ویلي دي چي پدې غونډه کي به خپلي غوښتني د سولي لپاره بیان کړي، او د امریکایي قواوو له حضور سره به خپل مخالفت اعلام کړي.

اخبار لیکي دا چي مسکو وکړای سول چي د افغان د لانجې دواړي خواووي سره یو ځای کړي، دا د کرملین لپاره یو ستر موفقیت دئ، او دا هم ښیي چي مسکو غواړي په جهاني سویه یو ځل بیا تبارز وکړي.

واشنګټن پوست لیکي طالبانو پدې وروستیو وختونو کي د متحده ایالاتو، ترکیې، سعودي عربستان، ایران، او نورو ملکونو سره خبري کړي دي،خو عموما دا تماسونه پټ او مخفي وي. وال سټریټ ژورنال د نومبر پر ۹ لیکي چي مسکو پدې وتوانېد چي د افغانستان د سولي لپاره د طالبانو استازي، د کابل د حکومت نماینده ګان، او د اوو نورو ملکونو دپلوماتان سره راغونډ کړي، او پدې ترتیب خپل سیمه ایز طاقت او نفوذ وښیي.

په مسکو کي د جمعې د ورځي غونډه به ستر لاسته راوړني و نه لري، خو پدې بین المللي کانفرانس کي د طالبانو ګډون د هغوی لپاره یو ستر دپلوماتیک بری دئ. او دا داسي ناستي به هغوی ته د دې موقع ورکړي چي په نظامي ډګرونو کي خپل موجوده موفقیتونه په دپلوماتیکو کانفرانسو کي ولوشي.

مسکو ټایمز: روسیې د افغانستان په مورد کي واشنګټن چنلنج کړ مسکو ټایمز د نومبر پر ۹ لیکي د افغانستان د سولي په باره کي د مسکو فورمټ کانفرانس به د امریکا او روسیې تر مینځ کشمکش لا زیات کړي. ځکه پدې وروستیو کي امریکا هم د افغان د سولي لپاره خپل کوښښونه ډیر کړي دي.

د مسکو په کانفرانس کي د روسیې خارجه وزیر پخپلي افتتاحیې وینا کي وویل،«روسیه غواړي چي د افغانستان ۱۷ کلن جنګ ختم کړي. پدې کانفرانس کي د افغانستان د کشالې د دوو مهمو اړخونو حضور به د افغان حکومت او طالبانو تر مینځ مخامخ خبرو ته لاره پرانزي«.

اخبار لیکي چي روسیه د طالبانو لدې غوښتني حمایت کوي چي وایي امریکایي قواووي دي له افغانستانه ووځي. یو روسی سیاسي مبصر، رسلان محمدوف، وایي،«روسانو له امریکایانو څخه د افغانستان اجنډا غلا کړه. روسیې دا وښوده چي کولای سي د افغانستان د مصالحې په برخه کي عملي ګامونه واخلي«.

# نفوذي طالب

د یوه ولایت والي صیب ځانګړو مشاورینو سره ناسته وه، بحث پدې و چې مونږ څنګه کولی شو چې دخپلو ساتونکو په لیکو کې د طالبانو لخوا ځای په ځای شوي افراد وپیژنو؟

د امنیې قوماندان خولهٔ وچه شوه په ریږدیدلي غږ یې وویل:

وا... وا..والي صیب مانا داچې د طالبانو افراد لا له وخته زمونږ او تاسې مینځ ته راداخل شوي؟

والي صیب سر وخوځاوه:

خبره داده چې په شتون کې خو یې یوه ذره شک شبهه هم نشته فقط ددې لپاره مې بیرنی ناسته مناسب وبلله چې مخکې له افسوسه لازم تصمیم ونیسو.

امنیه قوماندان یوه شیبه غلی و بیا یې د ملي امنیت ریس په لوري مخ ورواړه :

ریس صیب ستاسو مالومات څه دي ایا رښتیا هم داسې کیدای شي چې دوی دې زمونږ مینځ ته راداخل شوي او تاسې دې خبر نه وئ؟

د ملي امنیت ریس په ناهیلی ځواب ورکړ :

قوماندان صیب! ته خو پوهیږې چې دوی هره ورځ یو نوی تکتیک کاروي، هیڅ امکان لري چې ددوی شتون دې رد شي، دا ډیر بل قسم مخلوق دی قوماندان صیب محترم!

یوه شیبه خو د ټولو سرونه ځوړند و، بیا یې زیاته کړه :

اصلا جناب والي صیب او قوماندان صیب! مهم شی چې دی، اغه هماهنګي ده، د کندهار پیښې ته که وګورو دا هم کیدای شي چې نفوذي کس ته د راوستلو ټولې چارې د رزاق نیږدې یا په بل ډول که ووایم په داخل دنظام کې خپلو افرادو ورته برابرې کړي.

قوماندان او والي صیب دواړو د ریس خبرې تائید کړې:

ـ هو! هو! دې کې ایڅ شک نشته خبره مو بالکل پرځای ده.

ریس صیب وویل :

جناب والي او قوماندان صیب که وګورو دآرګ او کندهار وروستیو خړو پړو اړیکو ته که ژور نظر وکړو نو پوهیدلی شو چې حتما مو په هیواد کې نورې لوبې رواني دي.

والي صیب او قوماندان صیب یوځل بیا د هو په دود سر وخوځاو ویې ویل:

هو! منم، تېر خو هسې تېر دي، اغه بیا نه راګرځي خو له تېرو عبرت اخیستل پکار دي.

د خپلو ځانونو غم وخورئ کسم دی چې پخپلو ساتونکو کې تصفیه ونکړئ وبه ګورئ صبا یا بله ورځ به تاسې هم همدا خپل ساتونکي وژني، که نه غواړئ ځلویښتي مو د جنرال صیب قهرمان او جنرال صیب رزاق سره ګډه شي نو همدا نن عملي اقدام وکړئ کني بیا به ما پسې ام خلک وایئ چې دې پیښه کې د والي صیب لاس و.

هاهاها!!! ریس او قوماندان صیب دواړو ښه په زوره وخندل، ورته وکړل یې:

والي صیب ځان به نه باسې چې ذره تاوان چې راورسیږي سر له اوسه وصیت کوم چې ګورئ که مړ شوم والي صیب مې ځای ده.

د امنیت ریس/آمر هم ورسره غبرګه کړه چې :

هو! والی صیب ایما نه خو تاسې دواړه ولاکه خلاص شئ هاهاها!

دا سر له اوسه درته وایم که مړه کېږو نو یوځای به مړه کېږو، که هر یو مونږ کې بچ شو نو پوی شئ چې لانجه ټوله پـه هغـهٔ کې ده.

مجلس په همدې خندا پای ته ورسید.

ظاهرا خو دوی ټوکې سره کولې، خو شیبه وروسته د دریو واړو ذهنونو کې وېره پیدا شوه هر یوهٔ به ویل چې هسې نـه، دوی دواړه ما له مخې لرې نکړي، بل به ویل چې ماته کوم چل نه وي جوړ شوی، په یوچا به مې تحتـه کـړي او پـړه بـه یـې پـه طالبـانو ورواړوي.

ورځ تېره سوه مابښام شـو، ماخوسـتن هر یو پخپلو ځایونو کې تر ناوخته لټ پـه لټ اوونښتل هیڅ ارام یې نه و.

په صبا ورځ یې کرار کرار خپل جوړ شـوی پـلان تطبیقولـو، قومانـدان خپـل پولیس، امنیت آمر/رئس خپل کارمنـدان او والي صیب خپل ځانګړي ساتونکي یو یو له نظره تیرول.

درې واړه پـدې متفـق شـول چـې پـه داخل د صف کې یو یا دوه کسان مـالومول بیخي ګران کار دی، خـو یـوازینی حـل یـې دادی چې هر ساتونکی بایـد ترڅـار لانـدې ونیول شي خو اسانه او لنډه طریقه یې داده:

هرهغه سـاتونکی چـې پنځـه وختـه لمانځه کې غفلـت کـوي، سـاز سرود اوري، نشـه کـوي نـو پـدې پـوی شـه چـې دوی د طالبانو تر اغېز لاندې نشي راتلای.

اما که یـو څـوک مـو ولیـدو چـې د جماعت د مانځه پابند دی،

ذکرونه او تلاوتونه ډېر کوي، په ځان شُفونه اچوي شونډې خوځوي او رنګ یـې دغه د بیلمازانو غونډې سپیره نه وي نو پوی شئ چې همدغه طالب دی او زمـونږ تاسـې لپاره جدي خطر دی، سمدلاسه باید څېړنـې ترې وشي.

پـه صـبا ورځ چـې کومـو کومـو ساتونکو سهار وختي لامبلي او تیل لګولي و یـانې رنګ یـې پـرک کـاوهٔ هـم نـو د والي صیب اودس نه ټینګیده،

کله به یې یوهٔ کې سـترګې ګنـډلي وې او کله بل.

ساتونکي حیران و خپلو کې یـې سره ویل:

الکه قربانیه دا والي صیب بانـدې څـه وشول بیخي بدل شوی، همغسې خو نه دی؟

قرباني ځواب ورکړ :

خدای خبر مونږ ام ولاکه پوهیږو خو زه چې ورسره مخ شم همدا یـوه خـبره راتـه بار بار کوي چې:

ملګریه! ښه درباندې پـوهیږم، داسـې ونه وایې چې زه مالومات نلرم .

دویم ساتونکی پرې راجګ شو :

هـو والا! ماتـه دې هـم اوس رایـاد کـړل، همدغه خبره خو باور وکړه چـې ماتـه هـم کوي.

هن !..

دوی سره څک شول دریـم وویـل مـا دې شـین اسمان ووهـي چې والي صیب دا خبره ماته هم کړي وي.

دوی اوس حیران دریـان ولاړ دي، نـه پـوهیږي چـې د والي پـدې شـفر کـې څـه حکمت دی، چاوې چې د والي صیب د ښـه پوهیدلو مطلب دادی چـې زه مالومـات لـرم چې کـورنی اقتصـادي وضع مـو خرابـه ده کیدای شي نغدې مرسته به راسره کـوي، بـل به فکر کاوهٔ چې ښایي والي صیب به زمـا د وادهٔ غم خوري او بل همدغسې.

په زړه کې یې بلډیګونه جوړول، چـا د والي صیب پـه پیسـو وادهٔ کـړی وي، چـا کورتـه وریجـې غـوړي، غوښـې او نـور خورکونه..! او چا موټړې.

دوی خوارانو ته د خوشالی نه خـوب نه ورتلو سوچ یـې وکـړ چـې نیمـه شـپه ده ملایـان وایـي چـې دا وخـت سـخت سـوال قبلیږي هسې هم خوب د خوشـالی نـه کـېږه وکړه، دوه دوه رکعته نفل به وکـړو ګونـدې الله یې د والي صیب زړه کې واچوي.

درې واړه لاړل د ولایـت چـاردیوالی کې دننه مسجد تـه ننوتـل لمـونځ یـې وکـړ او اوږدې دعاوې یې ځانته وکړې.

خو دې وخت کې د والي صیب د څار دکمیټې دوه نفره راغلل بیرته ډېر ژر ووتل.

دوی ته پته نه وه چې لاړئ سر له ننـه تور لیست ته ولویدئ.

ددوسیې په اوله پاڼه کې راپور ولیکل شو چې :

قربـانی او دوه ملګـري یـې د شـپې پرمهال مسجد کې د تهجد لمانځه د ادا کولو په حالت کې لیـدل شـوي داسـې ښـکاریده چې دوی ځانته د قبول شهادت او طالبانو ته یې د بریا دعاوې غوښتې.

خیالي کیسه ( عبید عبید)

# په افغان جګړه کې د امریکا ماتې

# او په سیمه کې یې سیاسي حیثیت !؟

لیکوال : شهاب لیوال

کله چې روسيې په افغانستان کې ماتې وخوړه او بيا تـرې وروسته د ۲۰۰۱م کال د سپتمبر په میاشت کې د نیویـارک په سوداګریزو برجونو برید وشو، جنوبي آسیا له یـو لـړ بـدلونونو سره مخ شوه.

افغانستان هم د خپلې سیاسي نقشې او طبیعي زیرمو لـه وجې ښکار شـو، عـراق، یمـن او سـوریه کـې هـم جګـړو زور واخیست...

امریکـا د افغانســتان سـیاسي موقعیــت او خونـدي معدنیاتو دې ته اړ کړه، چې دا هیـواد دې اشـغال کـړي، هـو! امریکا فکر کاوه چې د خپل مغـرور معـاصر پـوځي ځـواک پـه مټ به په افغانستان کې د څو اونیو پـه تـرڅ کـې بریـا ترلاسـه کـړي، خپلـو ټولـو اسـتعماري اهـدافو تـه بـه ځـان ورسـوي، د افغانستان له مهم ستراتیژیک موقیت نه بـه نـاوړه ګټـه پورتـه کـړي. د خپـل نړیـوال حاکمیـت اجنـډا بـه عمـلي کـړي، او د افغانسـتان ترڅنـګ د سـیمي د هیوادونـو طبعـي شـتمنۍ او زیرمې به هم ترلاسه کړي.

خو لویه تېروتنه یې وکړه، ځکـه انګلـیس او روس هـم پـه همدې خوب دې غرنۍ سیمې تـه رادانګـلي وه، انګلـیس مـات شو او روسیه له خپل اتحاد سره له نړۍ وېرځېده، درونـد مـالي زیان او تر شل زره زیات عسکر او جنګي قومندانان یې مـړه او ژوبل شول، تـر ۴۵۰ زیـاتې چـورلکي یـې د اور خـوراک او لـس ګونه زره وسایط یې په افغانستان کې پاتې شول؛

په مقابل لوري کې افغان مظلوم ولس ته هم ستر ځاني او مالي زیانونه واوښتل، تر یو نیم میلون زیات انسانان شـهیدان، لس ګونه زره زخمیـان او معیـوب، څلـور نـیم میلونـه افغانـان ګاونډیو هیوادونو ته مهاجر شول، او بـې سـوادي او فقـر پکـې اوج ته ورسېد.

روسان تر امریکایانو خپلو لاسپوڅو ته ژمن او وفاداره وه، د امین، کارمل او نجیب حکومتونه یې په قوي نظامي او هوایي تجهیزاتـو سـمبال کـړي وه، د عامـه تاسیسـاتو بیـا رغونـه او اقتصادي پروژې یې هم یو څـه عمـلي کـړې وې؛ خـو بـرعکس امریکایان بیا داسې نـه دي، او پـه بـې ږرحمـۍ، وحشـتونو او افراطیت کې هم له روسانو څو چنده زیات دي.

امریکایي سیاسـتوال او پوهـان لـه دې املـه اندیښـمن او وارخطا دي چې په تېرو ۱۷ کالو کې یې نه یـوازې ۷۰۰ ملیـارده ډالر مصرف کړل، او زرګونه عسکر یې ووژل شـول خـو بیـا یـې هم په افغانستان کې کوم پـوځي پرمختـګ ونـه کـړ، او کومـه مثبته پایله یـې ترلاسـه نـه کـړه، ورځ تـر بلـې خپـل سیاسي، اقتصادي او اجتماعـي حیثیـت لـه لاسـه ورکـوي، د جګـړې او سیاست په ډګرونو کې یې بشپړ ماتې خوړلې، د افغانستان پـه روانه جګړه کې خپل متحدین پرلپسې لـه لاسـه ورکـوي، او دا ویره هم لري چې که جګړه وغځوي یوازې بـه پـاتې شي، نـو لـه همدې امله نور خپله ماتې نه شي پټولی او اعتراف پرې کوي.

له بل خوا په سیمه کـې هنـد، پاکسـتان، ترکیـه او عـربي هیوادونه هم د خپلو شخصي ګټـو پـه لټـه کـې دي او کوښـښ

کوي چې د امریکا له انحصار او قدرت څخه ځانونه خلاص کړي، او د امریکا خدایي دعوې تـه د پـای ټکی کېږدي.

لله الحمد امریکا په خپل اشغالي اهـدافو کـې پاتې راغلې، که چېرې یې په افغانسـتان کـې خپلـې موخې ترلاسه کړې وی، نو سمدستي به یې منځنۍ آسیا ته توجه اړولې وی، او پـه کسـپین بحیـره کـې نفتي او ګازي ځیرمو ته بـه یـې سـترګې پټـې کـړې وی. خو د افغان مظلوم ولس د سخت مقاومـت پـه وړاندې یې ټول مهـالوېش او اټکلونـه پـه اوبـو لاهـو شول، د منځنۍ آسیا موخې یـې لـه لاسـه لاړې او د دیموکراسۍ او آزادۍ په تېر ایستونکو شعارونو کې نغښتې شومې موخې یې ترلاسه نه کړی شوې.

په سوریه کـې روسـانو ورسره مخالفـت وکـړ، هنـد خپـل اقتصـادي راکـړې ورکـړې روسـیې سره ټینګې کړي، یمن کې پاتې راغلل، له بلې خـوا ایـران هم د امریکا لخوا اقتصادي فشارونو ته سر ټیټ نـه کړ، دا ټول هغه قوي ضربـې دي، چـې د افغانسـتان له جګړې یې ولیدلې.

نو امریکا دې د رواني جګړې پایلې ته په کتلـو سره خپل نظامي شتون ته په افغانسـتان کـې نـور د پای ټکی کېږدي، په دې سره به نه یوازې د افغانانو او امریکایانو ژوند وژغورل شي. د امریکا انساني او لوړ اقتصادي مصارفو مخنیوی به وشي، همدا رنګـه افغانان به هم د یو پـوره اسلامي او خپلـواک نظـام ترڅنګ، د دایمي سولې خاونـدان شي، لـه تحمیلـې جګړې به خلاص شي، ماشومان او تـور سرې بـه یـې نور په خوب کې په شهادت نه رسېږي، ځوانـان بـه مو د بې پیلوټـه (ډرون) ښکار نـه ګرځـي او افغـان ولس به له ناخوښې او تحمیلي جګړې خلاص شي.

## د نړۍ په کچه د مشهور اسراییلي سوداګر زوی مسلمان شو او ۱۸ ملیارده میراث وانه خیست

دنړۍ په کچه دمشـهور اسرائـیلي سـوداګر سـامیا افـر زوی (دالیـا افـر) داسلام سپیڅلي دین منلې، نوموړي له ترکیې خبري اژانس سره په مرکـه کې ویلي دي: پنځه کاله کیږي، چې داسلام پر مبارک دین مشرف شـوی دی.

دالیا دخپل پلار له مړینې وروسته اتلـس ملیـارده ډالـره میـراث رد کـړ، دنوموړي دې کار دنړۍ په کچه پراخه غبرګونونه او جنجال راپورته کړې دی.

دالیا افر پنځه کاله وروسته په خپلې مسلمانۍ اعتراف وکړ. د یـادولو وړ ده چې نامتو اسراییلي سوداګر سامیا افـر د خپـل ټـول ثـروت او شرکـت ۵۲عشاریه ۴سلنه برخه خپل زوی دالیا افر ته چې د دویمـې میرمنـې نـه یي وو او کله هم لیدلی نه وو پریښی وو. همداشان اسراییلي سوداګر پـه خپل وصیت نامه کې لیکلي وو چې د شرکت او ثروت ۵۲عشـاریه ۴سـلنه برخه به هله دالیا افر ته ورکړل شي چې دده د کورنۍ تخلص واخلي او په تذکره کې دده نوم ذکر کړي.

د نامتو اسراییلي سوداګر د مړینې نـه وروسـته د وصیـت نـامې د راوتلـو سره د ورورنو ترمنځه په میراث شخړې پیل شوې.

دالیا افر د شرکت د ریاست په څوکۍ د کیناستو نه وروسته خپل ورورنه راټـول کـړل او د شرکـت او ټـول میـراث نـه لاس پـه سر شـو. نومـوړي ۱۸ملیارده ډالره میراث رد کړ.

دالیا افر چې د سیاسي علومو او نړۍوالو اړیکو پـه برخـه کـې لـوړې زده کړې کوي د منځني ختیځ د سیاستونو پـه اړه د مونـوګراف د لیکولـو پـه موخه ترکیې ته راغی.

نوموړي په ترکیه کـې د یـو ګونـد سره د سـتراتیژۍ د متخصـص او دوو شرکتونو سره د سلاکار په توګه هم دنده ترسره کوله. همداشـان نومـوړي ترکیې ته د بهرنیو پانګه والو د راجذبولو په برخه کې ډیره مرسته وکړه.

دالیا افر د ترکیې د یو خبري اژانس ته په ځانګړې مرکـه کـې وویـل چـې پنځه کاله د مخه یې د اسلام مبارک دین قبول . نوموړي ویلي دي چـې د اسلام په مبارک دین د مشرفیدو په خاطر سعودي عربستان تـه لاړ او پـه مکې مکرمه کې د عمرې نه وروسته مسلمان شو.

# خپل سریتوب د کابل رژیم په قاموس کې

استاد سعود

په سیمه اېزه او نړیواله کچه د کابل رژیم اړوند نادرو، پېښو، حالاتو او تحولاتو، ترقی او تنازلاتو، چارو اوچارواکو، مرکچی او اندواند، پرېکړو او د هغو پایلو او... د عجیب او غریب منظر حجم او زموږ د مسلمان او مظلوم ولس په وړاندې ورته د اشغالګرو د اړتیا زیاتوالي له امله افغانستان په نړۍ کې د لومړي ځل لپاره د یو داسي قاموس په وړاندې کولو کار کوي چې پکې هرډول مذهبي، دودیز او کلتوري، نظامي، اداري، سیاسي او.....اصطلاحات له خپل اصل څخه په ټوله مانا تس نس شوي او یو داسي نابلده پېژندنه یې ور ځای شوې وي چې له اړوند هرډول ادلون بدلون سره اتومات اوړي را اوړي.

له همدې امله نو دا یو نادر او معاصر قاموس دی چې څرنګوالي یې نه تر دې مهاله چاته مالوم دی اونه کیدای شي بیاهم مالوم شي، په اړه یې دومره وایو چې د کابل رژیم نړیواله مفکری، ملي پیوستون، ملي پاڅون، اتلولی، ملي اتلولی، قهرمانی، جنرالی، مل پاسوالی او... ټول له همدې قاموسه دي چې ښکاره مانایې پوخ سفاهت او لېونتوب، څو سرى او متلاشي ملت، کرایي ملېشې، وژني-غارت-وحشت-بربریت، ولسي- ټولوژني، د پردیو پوخ تالی څټېټوب، جنرالی او مل پاسوالی دوه تش تشوېقي نومونه دي چې داسي چارو او هرډول فساد، غلا، بډو، شوکو، ربړونو، سفاکت او.....کې مخکښ رول ته د هڅونې په موخه ور کول کېږي او داسي نور...

په دې قاموس کې د پام وړ یو دا چې د رژیم استخبارات او ملیشیاوي له متبادل آدرسه بهر ته رژیم ته تسلیمېږي، مانا یې له یاد آدرسه د رژیم کرایي ملېشې د هر راز ناوړه او بشر ضد چارو ترسره کولو وروسته د هغه د پلان، اړتیا او مصلحت له مخي بېرته د رژیم په نوي نوم په هغه کې لازیات لوبول وي.

دوهم دا چې واقعیتونه پکې په ټوله مانا سرچپه دي، د بېلګې په ډول د هېواد ځمکنی بشپړتیا څخه په ننګه چې د کابل رژیم په ښکاره هرڅه وکړي یا و وایې مانا یې دا چې له کومي پولي یې څه برخه د یوې معاملې له مخې خرڅه کړې، که مخنیوی یې کېږي نو د رژیم غبرګون به له هغه هم لوړ وي چې په ښکاره یې د ځمکنی بشپړتیاڅخه په ننګه کې په ځان منلی وي.

او درېیم دا چې د رژیم د یوې ستري مرکزي څانګې اړوند مسئولیت د هغه په امر د همغې څانګې له آدرسه داسي په مخ وړل چې د ناوړه پایلو له ښکاره کېدلو وروسته یې رژیم ته نسبت نکېږي، مانا یې دا چې که څه هم د مر کزي رژیم په قوماندو او له غوښتني سره یې سم وي خو بیاهم چې د بشري حقونو د څار نړیوال کمیسیون او یا هم خپل ملت په وړاندې یې هغه د ځان بدرنګی ګڼي د همدې اړتیا له وجې د نارسمي، له خپلي قوماندې وتلي او خپل سري نوم ور کوي، خو چې له پوځي، سیاسي او حقوقي مخې دېته هم د یو نظام په سېستم کې ځای نشته د کابل رژیم اړ دی چې د ځان سپېنولو هڅه

وکړي، په یو نوم غبرگون وښيي او په اصطلاح خپل سرى قوماندان له ځانه په ور کړو امکاناتو او تمویل د پراخو تبلیغاتو په ملتیا له خپلو سرتېرو سره و جنگوي (ککري خو هسي- هم د هډوکو په بیه دي)، وروسته بیا و وایي چې په نېولو یې ونه توانېدو، نور بس خپلي زړې قوماندې او زړو چارو ته همغسي- گرم په نوي موډ کې دوام ور کوي.

د دې قاموس له مخې د رژیم ځینې خپل سري لکه په ژوندو کې حکیم شجاعي، اسد الله خالد، دوستم، عطانور او... په وژل شویو کې عزیزالله کاروان او جنرال رازق د بشري حقونو د څار نړیوال کمیسیون د بشري سرغړونکو په توگه د محاکمې دوسیې لري او د کابل رژیم ته یې لا له پخوا د نېولو امر شوی و، له دوی پرته قیصاري، علي پور او داسي گڼ شمېر نور هم شته چې د کابل رژیم یې په ښکاره له نېولو او محاکمې ناوسي ښيي خو له بل لوري یې تمویل او قومانده بیا هم د دوی په غاړه ده.

په دې وروستیو کې کله چې د کابل رژیم غني دلي د (رژیم په قاموس کې) خپل سري قیصاري سره پوځي زور وکړ په وراندې یې ټول شمال کې غوغا جوړه شوه، ورپسې علي پور د (رژیم په قاموس کې) خپل سري رازق په پله ټول رژیم چېلنج کړ چې نه یې نېولای او وژلای شي او نه له خپلو کړنو راگرځي، تر څنگ یې د اجرائیه مرستیال محقق را ښکاره شو او و یې ښوده چې علي پور په نوم خپل سری خو تمویل یې بیا هم د اجرائیه له لاري د رژیم په غاړه دی، هغه و چې څو ورځې وړاندې د مرکزي رژیم له لوري د اتلولۍ دنوم او مډال په لاس د جاغوري ولسوالۍ او شجاعي د ژغورني لپاره غزني ته ولېږل شو.

حکیم شجاعي چې د کرزي په حکومت کې یې لا د نېولو امر شوی و د سرور دانش له لاري بیا هم له مرکزي رژیم سره نښلي او تر اوسه یې کابل رژیم د خپلي ملېشې په توگه تمویل په غاړه لري، په خاص روزگان، مالستان، جاغوري او نورو سیمو کې یې مجهز مرکزونه درلودل چې په خاص روزگان کې تازه د طالبانو له لوري د سختو جگړو په مټ د هغه په ځپلو له منځه یوړل شول، شخصاً شجاعي هم په مرگوني ټپي او ابتر حالت کې د شپې له تیارې څخه په گټه و تښتېد طالبان د غزني جاغوري او مالستان ته پسي لاړل، له ځپل کېدو وروسته یې دانش ملېشو ته د ولسي پاڅون په نوم ورکولو ډېري بغاري وربانديې و وهلې، په مرکزي رژیم یې د ور دانگلو غږ وکړ، ولسي- خلک یې و هڅول او هرڅه یې وکړل.

خو سرچپه په خاص روزگان کې ځمکنۍ حقیقت او د طالبانو وجاهت ته په کتو د پینځو قومي مشرانو په منځگړیتوب څو کلیو له طالبانو سره لاس یو کړ، پراخه سیمه یې د هغوی په واک کې ور کړه او د دانش+شجاعي له ملېشو یې پرېکون اعلان کړ، د کابل رژیم د ولسي جرگې د غړیو په وینا د خاص روزگان، جاغوري، مالستان او... سیمو کې د وروستیو سختو جگړو عمده او مرکزي لامل همدا د ارگ اداري په اصطلاح خپل سری شجاعي دی خو رژیم بیا هم ورباندې پټه خوله بلکې لا یې د ولایت تر مرکز پوري د ولسوالیو پر سقوط داسي غبر گون نه دی ښودلی لکه د یادو سیمو په اړه چې یې ښيي، په دې مانا چې که تر ټولو کراره او له امن څخه برخمنه سېمه په تر ټولو نا امنه سېمه اوښتې، که هزاره وگړي وېرېدلي- لاریون ته اړشوي او بیا د برید ښکار شوي، که د رژیم په لویه پېمانه پوځیان تلف شوي یایې پراخې سیمي له واکه وتلې هرڅه د شجاعي پر سر دي، همدا راز د مرتضوي او حنیف اتمر، امرالله سالي، عمر زاخیوال، رحمت نبیل ترمنځ د ټویټ له لاري ناندرۍ هم د همدې شجاعي پر سر دي چې مرتضوي وروستي څلور د هزاره لاریون والو په ملاتړ رټلي او ورته یې ویلي دي چې تاسو سیاستوال د شرم په نوم څه نه پېژنئ او داسي نور...

له دوی هم ور هاخوا د کندهار وژل شوي قوماندان رازق چې له قوماندانۍ یې د گوښه کېدو هېڅ امکان نه لید، په زغرده او ډانگ پېیلې یې غني ته کره چې نه تا په دې دنده گمارلی یم او نه مې گوښه کولای شې، طالبانو هغه له قوماندانۍ هم ورته را وغورځاوه او له بشري حقونو د سرغړوني په تور یې محاکمه هم کړ خو بیا جهان ولیدل چې د بشري



پلاوی په یو نوم لاړ په بل نوم راستون شو او رژیم پرې په فساد کې د نشیې توکو له قاچاقه د سیاست قاچاق ته لوړ شو، بیا لاهم چې د کابل رژیم د دې پلاوي نېمګړتیا، په غونډه کې بې ارزښت توب او ناکامي پایلي ته و ګوري له خپل ادرسه یې نشي بللای خو چې په غونډه کې په نه ګډون تر نېوکولاندې راشي بیایې په وقایوي توګه خپل استازي بولي.

له بلې خوا په مسکو کې د کابل ادارې سفارت پرته له دې چې مرکزي رژیم ته خبر ورکړي، د غونډې په اړه دریځ یې و پوښتي، د ور تلونکې پلاوي په اړه خبر ولري او یا هم د غونډې کوربانه بلنه ور کړې د سهار ناشتې په مهال د غونډې تالار ته رسېدلی و، له دریېم لوري د پخواني ولسمشر کرزي مرستیال یونس قانوني په د غه غونډه کې د مقاومت جبهې نه شتون له امله بیا هم داتوله غونډه نه مني پلاوی خو اېسته کړه، نلنډه دا چې دې پلاوی او یاهم د سولي شورا د مسکو په غونډه کې خپل سری ګډون کړی و، په مسکو کې افغان سفیر خپل سری غونډې یا روسي ناشتې ته ورغلی و، قانوني د رژیم رسمي پلاوي+د مسکو مهمي غونډي په نه منلو او ورکې د مقاومت جبهې لازم ګنلو په شرط خپل سری دی، او د دوی پر اثر ترټولو ناقانونه خپل سری غني دی چې له یوې میاشتي راسي ولسمشری ته د بیا درېدو لپاره کمپاین کوي، د رژیم له امکاناتو او رسمي وخت ورکې پراخ کار اخلي خو درې میاشتي لانوري پاتې او د کمپاینری دوخت ټاکنه لاهم لېري ده، همدارنګه د دې ټاکنو په ترسره کېدو کې په خپل سفاهانه استدلال د خپل عالیجناب (امریکا) له موقف او د افغان ولس، سیاستوالو ولسمشری ته ولاړو کاندیدانو له غوښتني او لمړیتوبونو هم د ځان مخکې کولو په هڅه کې دی، دېته وایې خپل سریتوب د کابل رژیم په قاموس کې، اوس د حساب ماشین ورپسي را واخلئ د کابل رژیم خو دوه نړیوال بین المللي سرونه دي دا نور را وشمېرئ چې څو کېږي او دا رژیم څو سری دی؟!!

حقونو د نړیوال کمیسیون د دغه ستر خپل سري مجرم وژل کېدل د هغه په نېولو مأمورو چارواکو او د کابل پر رژیم څومره وغمېده او ولې؟!! ولس او نړی ولیدل چې ارګ او سپېدار ماڼیو، ټولو کمونستو او دیموکراتو چارواکو له دې وجې د رازق په وژنه خواشیني وښوده چې هغه چاري نیمګړې پاتې شوې چې له امله یې رازق د بشري حقونو نړیوال کمیسیون، ځورېدلي مسلمان ملت او هم د قوماندانی پرسر د کابل رژیم له لوري محکوم و او همدغه او یا له دې هم زیات او سخت باید ورسره شوي واي چې طالبانو ورسره وکړل.

اوس راشه په سیاست کې د دې قاموس په اصطلاح خپل سریتوب ته؛ مسکو چې د افغانستان د کشالې اړوند غونډې تابیا نېولې وه له یوې میاشتې څنډ وروسته د تېرې جمې په ورځ یې تر سره کړه، ارګ د واشنګټن د دریځ په تعقیب کرهاً د یو داسي پلاوي په لېږلو ورکې ګډون وکړ چې هویت یې نه و مالوم، ځکه سره له دې چې سولي شورا خو د رژیم په جوړښت کې مهمه مرکزي څانګه ده بیا یې هم دغه پلاوي ته د سولي شورا له ادرسه د کابل رژیم له جوړښت او چوکاټه وتلي نارسمي پلاوي نوم ورکړ، نو واقعي آدرس خو یې و ورک د موندلو امکان یې هم له منځه ورسره لاړ، دې نارسمي پلاوي هلته د رسمیتوب دعوه وکړه، د افغانستان رسمي استازیتوب یې وکړ، له هغه لوري یې د طالبانو خبري او دریځ رسمي راوړل او دلته پرې رسمي شخوند پیل شو، قاچاقي

# دخاشقجي قتل دکوموا هدافو لپاره؟




شهید زوی

دسعودي پر دولت او دولتی مشرانو مشهور انتقادکونکی سعودي نژادی امریکایي جورنالست جمال خاشقجي چې داکتوبر له دوهمې نېټې راهیسې بې درکه ودقتل کېدلوپه اړه دسعودي عربستان داعتراف نه پس ددې هېواد شاهي دولت دسختو مشکلاتو سره مخامخ اوپه نړیواله سطحه دسخت فشار ښکار دی ؛ دترکې په استنبول ښارکې دسعودي قونصلګرۍ کې دخاشقجی قتل کېدلودترکې اوسعودی ترمنځ دهغوخرابو اړیکونه تر ډېره حده پرده پورته کړې چې عام خلک ترې نا خبره وو .

دترکې ولسمشرطیب اردګان اعلان کړیدی چې دجمال خاشقجي دقتل په اړه به پرحقایقوولاړتول معلومات په ډاګه کړي ؛ هغه دترکې پارلمان ته دویناپرمهال دخاشقجي په قتل جورخفګان ښکاره کړ او داپې پلان شوې وژنه وګڼله .

دپلان شوې وژنې داتور داسې تور دی چې مخامخ پرې دسعودی مشران په نښه شویدي او دا داسې تور دی چې دسعودی مشرانوهم اوس منلی دی خوترڅنګ یې داویلي دي چې دا کار ددوئ له اجازې پرته یودبغاوت نه ډک عمل و چې ترسره شویدی .

بل لورته دامریکا ولسمشر ټرمپ هم یوځل بیاویلي دي چې هغه دجمال خاشقجی دقتل په اړه دسعودي له لورې دوړاندې شویووضاحتونو نه مطمئن ندی ؛ په سپینې ماڼۍ کې دجورنالستانوسره دخبروپر مهال ټرمپ وویل :تراوسه چې ما څه اورېدلي دي څه ترې مطمئن نه یم ؛ څه امېد لرم چې پدې اړه به ماته قناعت ښونکي معلومات راکړل شي .

دروانې اکتوبر میاشتې په ۲مه نېټه چې دترکې په استنبول ښارکې دسعودي قونصلګرۍ ته دنړۍ په سویه نامتوسعودي نژادی جورنالست جمال خاشقجی دتللونه پس بې درکه شونو دبې درکه کېدونه لړه موده پس ترکې ویلي وو چې هغه قونصلګرۍ ته دننوتلونه پس وژل شویدی ؛ په پیل کې سعودي په قونصلګرۍ کې دخاشقجی دوژل کېدونه انکارکاوه خواوس یې منلی ده چې جمال خاشقجي په قونصلګرۍ کې دننه وژل شویدی خو ویلي یې دي چې دا دلړپوړوچارواکو له اجازې پرته یوخودسري وه چې رامنځته شوې ده .

دسعودی دباندنیو چارو وزیر عادل الجبیر دامریکایي تلویزون سی .این .این سره په یوې ځانګړې مرکه کې ویلي

وچې دا اقدام یوه ستره خطا وه ؛چاچې کړیدی دخپل واک نه یې تجاوز کړی ؛ موږ حقایقو ته ځان رسول غواړو ؛ عاملین به سزاومومي ؛ موږ پدې اړه ژمن یو؛ خوباید ووایم چې محمد بن سلمان دخاشقجی دمرګ حکم ندی ورکړی اونه ترې خبرو ؛ داستخباراتو مسئولین هم دهغه دقتلولوپه اړه په جریان کې نه وو اچول شوي .

کله چې شاه سلمان دمحمدبن نائف پرځای خپل ځوی محمد بن سلمان ولی عهد جوړ کړ نو دهماغه وخت نه دسعودي په بهرنۍ اوکورنۍ تګلارې کې دجارحیت عنصر ډېر شویدی ؛ داچې دسعودی په ټولوجارحانه اقداماتوکې امریکا اونورلویدیځ خپلې ګټې لیدلې نو وربانديې یې سترګې پټولې بلکې دا اقدامات دهمدوئ په لمسون کېدل ؛دسعودی داقداماتوپه اړه دلویدیځ همدې دریځ نه محمدبن سلمان ځان دیو دیکتاتور په شکل کې ازادمحسوس کړنو ځکه یې دیوجورنالست قتل ( که رښتیا یې کړی وي )کېدل دومره لویه خبره نه ګڼله خوترې خطا داوشوه چې داکار یې دخپل هېواداودواک دسیمې نه بهر دطیب اردګان په څېر قوي مشر لرونکې ترکې کې وکړ اوبله خطا یې داوکړه چې داکار یې دنوروپه لمسون وکړ نو دهوښیارې مرغۍ په څېر یې دواړه پښې په دام کې ونښتې .

دیادولووړده چې ددې قضې څېړلوپه موخه څو ورځې وړاندې دامریکا داستخباراتي ادارې سی .آی .ای مشره جینا هیسپل هم ترکې ته په سفر تللی وه اودبانډنیو چارو وزیر پومپیوسعودي ته په سفرتللی و.

امریکا غږته دامریکا دباندنیو چارو وزیر پومپیو ویلي دي چې دحقایقو رامخې ته کېدل مهم دي ؛ سعودي بایدددې قضې تل ته ورسېږي اوحقایق دنړۍ مخې ته کېږدي ځکه چې پېښه ددوئ په قونصلګرۍ کې رامنځته شویده ؛ ماسعودی ته دسفر پرمهال دسعودی مشرانو ته ویلي دي چې امریکا داقضیه جدي ګڼي ؛که سعودی دخاشقجی قتل کې ککړثابت شونودامریکا دغبرګون سره به مخامخ شي .

دپومپیونه چې دسعودی په اړه وپوښتل شول نو ویې ویل چې د۱۹۳۰م لسیزې راهیسې زموږ اوسعود ی ترمنځ ستراتیجیکه دوستي ده ؛ زموږ ورسره جورې اقتصادي اړیکې دي اودتروریزم پرضد جنګ کې زموږ ترټولومهم اتحادي دی .

دترکې په اړه هغه وویل چې دترکې سره زموږ جور روابط دي ؛ هغه زموږ دناټو غړی هېواد دی ؛ موږپه روابطوکې ستونزې لروخوترکیه ډېر ستراتیجیک جغرافیایې موقعیت لري ؛ ترکیه داروپا اومنځني ختیځ ترمنځ دپول حیثیت لري ؛موږ بایددترکې سره خپل روابط ښه وساتو ترڅوهغه اهداف ترلاسه کړوچې ددواړوپه ګټه دي .

عجیبه داده چې دخاشقجی قتل دسیمې په سطحه دومره لویه قضیه وګرځېده چې دټولوپه نرخونوکې دلوړوالي ، پر ایران دبندیزونواودسیمې په اړه نورې ډېرې سیاسي خبرې بیخي شاته اود سیاست سمت بدل شو .

دخاشقجی دقتل دخبر خپرېدو دپیل ورځوکې چې دامریکا په دریځ کې دسعودی پر ضد څومره سختي ښکارېده اوس پکې هغومره سختي نه ښکاري ؛ شنونکي پدې باور دي چې په داسې وخت کې چې امریکا دایران دټولوپه خرڅلاو بندیز لګولی که امریکا دخاشقجی موضوع ته هم زور ورکړي نو دا دعوه یې ترډېره حده دسوال لاندې راځي چې په سیمه کې دټولوبدیومنبع ایران دی .

خو دا هم یقیني ده چې دامریکا دانرمي به بې له عوضه نه وي بلکې خامخا به دسعودي حاکم سره پدې اړه پټه معامله شوې وي ؛ امریکا به اوس سعودي دې ته اړباسي چې دتېلوصادرول زیا ت کړي او دایران پر تېلو دبندیز له امله په نړیوال مارکیټ کې دتېلو کمښت بې له نرخونو لوړولو پوره کړي .

ددې ترڅنګ به امریکا نورې غوښتنې هم لري چې دوخت په تېرېدوبه راښکاره شي .

دیادولو وړ ده چې له هغه راهیسې چې محمدبن سلمان واکمن شویدی دریاض او انقرې ترمنځ روابط خراب شویدي خوداچې یواځ هم د اړیکو دخرابوالي په اړه دنړۍ خبرېدل ګټور نه ګڼل نوځکه به هر یوپربل تر ډېره حده دانتقاد کولونه ډډه کوله .

سره له دې چې ترکیه دمنځني ختیځ برخه نه ګڼل کېږي خوله دې امله چې داروپا اومنځني ختیځ ترمنځ دپول حیثیت لري ؛ د منځني ختیځ تحولات اوسیاسي حالات وربانـدې نېغ په نېغه اغېزې لري اوبل لورته داسلامي نړۍ یومهم هېواد دی نو په منځني ختیځ کې خپل حضور اونفوذ حتمي بولي اوپه مهمو ټولوتحولاتو کې هم خپل رول مهم ګڼي ؛ ترکیه داسې انګیري چې محمد بن سلمان دامریکا په لمسون دایران ترڅنګ ترکیه هم له منځني ختیځ نه بیرون کول اود ټول منځني ختیځ پرېکړې په خپل لاس کې اخستل غواړي چې همدې دانقرې او ریاض روابط خراب کړیدي .

امریکا په شام اوعراق دواړو کې کردان پـدې نـوم تقویه کوي چې دوئ د داعش په مقابل کې جنګېږي خوترکیه وایې چې په ترکې ، شام اوعراق کې کردانو د آزاد کردستان درامنځتـه کولـو اودیـادو هېوادونـو دتجـزېـ لپـاره ددولتونوپرضدراپورته شویدي چې په هریوهېوادکې یې ټول لویدیځ اوخصوصاً امریکاحمایت هم دهمدې هدف لپاره کوي ؛ امریکا اوټول لویدیځ غواړي چې یاد هېوادونه تجزیه او له منځ نه یې یوداسې لاسپوځی کردستان رامنځته کړي چې په منځني ختیځ کې دامریکا اونورلویدیځ دشومو اهدافو دتحقق اصل مرکز وي ؛ داسرائیلوپه څېر دسیمې بدماش اولویدیځ ته وفادار وي اودلوی اسرائیلودتحقق په لارکې دپول او آلې په توګه وکارول شي .

نو دامریکا له لورې دکردانودجاري مرستې ترکیه سخته مخالفه ده ؛ اوس چې ترکې دروسې نه ایس ۴۰۰ دتوغنـدو ضددفاعي سیستم واخستلو نوله امله یې دامریکا سره د روابطوپه خرابوالي کې نور زیاتوالی هم راغلو.

داچې سعودي دکردانوسره دامریکا لـه مرستوحمایت کـوي نـودترکې سره دسعودي داړیکوپـه خرابـوالي کـې ددې خبرې هم مهم رول دی .

کله چې پـه ۲۰۱۲م کـې پـه مصرکې دمحمـد مرسې پـه مشرۍ کې داخوان المسلمین ګوند په انتخاباتو کې کامیاب او اداره یې جوړه کړه نو دترکې مشر طیب اردګان یې پـدې هیلـه ستاینه اوحمایت وکړ چې دوئ به هـم دطیـب اردګـان دعـدل اوپرمختګ دګوند په لاس دجوړ ې شوې اداري په څېر معتدله اسلام خوښې اداره جوړه کړي ؛ بیا چې کله پـه پـه ۲۰۱۳ م کـې جنرال السیسي دمحمدمرسي په اداري کودتا وکـړه ؛ دمـرسي پـه شـمول دکـابینې ګـڼ وزیـران اود داخـوان المسلمین پـه زرونوغړي یـې زنـدانیان کـړل اودمـرسي پـه حمایـت کـې پـه زرونولاریـون کـونکي یـې قتـل اوټپیـان کـړل نوطیـب اردګـان دمصري فوځ داټولې کړنې په سختو ټکو وغندلې .

خو برعکس دسعودي شاهي دولـت داخـوان المسـلمین فکر په خپل هېوادکې دخپل واک لپاره ډېر تاواني ګڼي نوځکـه یې دمصـر اخـوان المسـلمین تروریسـت ګونـداعلان کـړی ؛ د دوئ پرضددفوځي کودتا په نتیجه کې درامنځته شـوي فـوځي حکومت نه یې حمایت اعلان کړ اوورسره یې دملیاردونو ډالرو مرسته هم وکړه .

نوداخوان المسلمین په اړه د ترکې اوسـعودي ددریځـونـو دا لوی تفاوت ددواړوهېوادونوترمنځ داړیکو دخرابـوالي یوبـل مهم لامل ګڼل کېږي .

دقطر سره دترکې ښې اړیکې اودلته دترکـې دفوځي اډې شتون هـم دریـاض اوانقـرې دروابطودخرابـوالي یـومهم لامـل ګرځېدلی دی .

هـو! دایـران سره دښـوروابطو درلودلوپـه جـرم سـعودی عربستان قطر ته دسزا ورکولو په موخه دقطر سره دیپلوماتیکې اړیکې پرې کړې ؛ اقتصادي بندیزونه یې پرې ولګـول ؛ دقطـر پر وړاندې یې ځمکنۍ لار وتړله ؛ دسعودي ددې اقـداماتو پـه مقابل کې ایران اوترکې دواړو قطر ته اوږه ورکـړه او دې دواړو

هېوادونو دهوا اوسمندر له لارې قطر ته خوراکي توکي اوداړتياوړ نور اشياء ورچالان اودقطر ټوله اړتيا يې ورپوره کړه چې پدې سره يې دسعودي بنديزونه عملاً بې اثره کړل اوپه قطر کې دترکې فوځي حضور لا پسې قوي شو .

نودا اوځنې نور داسې عوامل شته چې له امله يې دترکې او سعودي ترمنځ دخاشقجي دقتل کېدو نه لا وړاندې هم اختلافاتو شتون درلودلو.

که بېرته دخاشقجي دقتل خبرې ته راشو نو بايد داومنو چې ټول قرائن ددې شاهدي ورکوي چې دا کار محمدبن سلمان کړيدی خو دامريکا هم پکې لوی لاس دی .

دامريکا او اسرائيلو استخباراتو دسعودي اوترکې همدا پټ اوښکاره اختلافات چې مو ترې يادونه وکړه په پام کې نيولي اوبيا يې په ډېر دقت دا پلان جوړ کړی اوعملي کړيدی.

پلان داسې عملي شو چې اول دامريکا اونورلويديځ په رسنيوکې داخبرې خپرې شوې چې دسعودي پر اداري ديوالړ نرمو انتقادونو له امله شايددسعودي دولت نورخاشقجي ونه زغمي اوآثار داسې ښکاري چې خاشقجی زنداني کړای شي ؛ خاشقجي ددې خبرو دخپرېدونه پس وېرې واخست او په تېر ۲۰۱۷م کال کې امريکاته ولاړ ؛ په امريکا کې دهمدې خودساخته تبعيد په شپو ورځو کې هغه په خپلوليکنوکې دسعودي ددولت اوخصوصا دمحمدسلمان پرضد په نسبتاً محتاط انداز خپلو انتقادونو ته دوام ورکړ اوپه مشهورې امريکايي ورځپاڼې واشنګټن پوسټ کې خپرې شوې په خپلې ړومبۍ مقالې کې هغه ليکلي و چې ددولت لورې دزنداني کېدلو دسخت خطر سره مخامخ و .

بس دهمدې ځای نه امريکا دسعودي شاهي دولت او په ځانګړي ډول دمحمد بن سلمان په ذهن کې دا ور واچوله چې په مطبوعاتي ډګر کې که دالجزيرة تلويزون نه وروسته څوک دسعودي دولت ترټولوزيات دښمن وي نوهغه به جمال خاشقجي وي .

ويل کېږي چې دمحمد بن سلمان دامريکا دولسمشرټرمپ ديهودي زوم جارج کشنر له لارې دامريکااو اسرائيلو داستخباراتوسره جوړې اړيکې جوړې شويدي ؛ دهمدې دواړو هېوادونو استخباراتوبه محمدبن سلمان ته دجمال خاشقجي نه دخلاصون لار دهغه وژل ښودلي وي ؛اودابه يې هم ورته ويلي وي چې دوژلولپاره يې ترټولومناسب اومصئون ځای ترکيه ده ؛ دامريکا استخباراتو بيا محمد بن سلمان ته د خاشقجي دراتلوپه اړه پوره معلومات ورکړيدي اودهمدې کره معلوماتو درلودلو پربنسټ دترکې په وينا دسعودي نه دده د وژلولپاره داکتوبر په دوهمې نېټې په خصوصي طيارې کې د۱۰ نه زيات سعودي اتباع راغلي دي او قونصلګرۍ ته دننوتلو او هورې دخاشقجي دوژلو نه پس په هماغه ورځ بېرته تللي .

امريکا او اسرائيلو به ددې يوې پېښې د رامنځته کولولپاره ډېر جور فکر او ددې پلان دکاميابولو لپاره ډېر کوششونه کړ ي وي ځکه چې ددې يوې پېښې په رامنځته کولوېې دځان لپاره ټاکلي کابوټول اهداف ترلاسه کړل .

اصل خبره داده چې سعودي هڅې کولې چې له امريکا پرته نوره نړۍ هم په سعودي کې دپانګونې لپاره وهڅوي اوددې لپاره يې ستر اقتصادي کانفرانس هم راغوښتی و ؛ داکانفرانس ددې پېښې نه وروسته داير شو خوپه تمامه معنی ځکه ناکام وچې دهمدې پېښې درامنځته کېدو له امله پکې امريکا او د اروپا ۳ مهمو هېوادونو فرانسې ، برتانې او المان دګډون کولونه معذرت وړاندې کړ .

همدا رازسعودي غواړي چې په خپلې دفاع کې پر امريکا له انحصار نه ځان راوباسي اودخپل فوځي ځواک دپياوړي کولو لپاره له نورو هېوادونو هم وسلې اونور عصري فوځي وسايل ترلاسه کړي خوددې پېښې درامنځته کېدو نه پس به پدې لار کې سعودي دزياتو مشکلاتوسره مخامخ شي اوبېرته به سعودي اړشي چې پر امريکا انحصارته دوام ورکړي او دوسلو

اخستلو دملیاردونو ډالرو دټرونونو له لارې دامریکا دوسلو فابریکې تر اوږدې مودې چالانې وساتي .

تېره میاشت سعودي دجرمني سره ۴۸۰ ملیونه ډالرو په ارزښت دوسلو اخستلو ترون لاسلیک کړی و خوددې پېښې درامنځته کېدونه پس دجرمنې چانسلرې انگیلامرکل اعلان وکړ چې پرسعودي دوسلوپلورلو ترون لغوه کوي اونه شي کولی چې پرسعودي وسلې وپلوري .

سعودي په نړۍ کې هم بې اعتماده شو؛ دبشر ـ دحقوقو نړیوالې ادارې له سعودي غوښتي دي چې ژرتر ژره دې دخاشقجي جسدراښکاره کړي ترڅو یې طبي معاینات وکړی شي او دپېښې اصلي عاملین معلوم شي ؛ دبشر ـ دحقوقو دنړیوالې ادارې دمنځني ختیځ دچارومشرې سیما حدید ویلي دي چې دملگرو ملتونو دادارې تحقیق اوتفتیش اړین دی ؛ دپېښې په اړه دسعودي عربستان وضاحت داعتماد وړ نه دی ؛ سعودي عربستان ددې لپاره دروغ وایي چې دنړیوال فشار نه ځان وباسي او نړیوالو روابطو اواقتصادي گټوته یې تاوان ونه رسېږي .

که څه هم دسعودي اوترکې ترمنځ اختلافات شته اوددواړوهېوادونوروابط ډېر ښه ندي خوتردې حده هم روابط ندي خراب چې دواړه یوبل ته ددښمن په نظر وگوري ؛ تر اوسه یوهم بل ته دتاوان رسولو اقدام ندی کړی اویوپه بل باندې دښکاره انتقادکولونه هم ځان ساتلی دی او داچې دواړه یودبل په اهمیت پوهېږي نو له دواړو لورو اوس دروابطو دښه کولو لپاره هڅې هم روانې وې خو اوس به ددې پېښې په رامنځته کېدو دا روابط ډېر خراب شي ځکه چې په بل هېواد کې دیودولت له لورې داسې پلان شوی قتل ډېر خطرناک اقدام دی ؛په بل هېوادکې داسې اقدام دهغه هېواد خپلواکي ترپوښتنې لاندې راولي .

نوسعودي اوترکې ته یاد تاوانونه رسول هم دامریکا مطلوب دی خو دامریکااو اسرائیلو اصل او خورا مهم هدف دسعودي ادارې او په ځانگړې ډول محمدبن سلمان کې دتل لپاره واگې اچول یا په اصطلاح بلیک میل کول دي ؛ امریکا ، نور لویدیځ او اسرائیل محمد بن سلمان ته سخت خوشاله دي ځکه چې په لږ وخت کې یې دهغوئ دتمونه هم زیات داسې اقدامات وکړل چې ټول یې پرې خوشاله کړل .

ټول غرب او اسرائیل تمه لري چې تر راتلونکو۵۰ کلونو پورې به محمد بن سلمان دسعودي واکمن وي نوځکه دټولو دتوجو مرکز گرځېدلی دی اوغواړي چې په کلي ډول یې دځان تابع کړي ؛ دوئ به دده کم عمر او دچوکۍ اوشهرت سره د ډېرې مینې نه په استفادې دده نه همداسې کارونه اخلي چې پکې سخت راښکېل کېږي او ورنه دوتلولپاره همدې امریکا اونور غرب ته محتاج وي ؛ امریکا اونور لویدیځ به یې دمشکلاتونه راوباسي خوپه شرایطو .

اوس به هم امریکا همداسې وکړي ؛ شاید یوڅو تنان پدې نوم محاکمه شي چې داکارېې په خپل سرکړی ؛ امریکا اونور لویدیځ به پدې اړه خپل اطمینان ښکاره کړي خوپدې شرط چې محمد بن سلمان دتیلوپه نرخونوکې دلوړوالي راوستلوپرته نړیوال مارکیټ ته دتېلوصادرول زیات کړي ؛ کله چې دکوم اسلامي هېوادپرضد لویدیځ داقدام کولو غوښتنه سعودي انکار ونکړي .

دسعودي دولت نه به وغواړي چې داصلاحاتوپه نوم داسې نور اقدامات هم وکړي کوم یې چې کړیدي. اوترټولو مهمه دا چې امریکا به له سعودي نه وغواړي چې پخپله اوپر نورو اسلامي هېوادونو داسرائیلو په رسمیت پېژندلوکې داخلاص نه کار واخلي .

بس دا اوس په سعودي اوترکې ده که خپلمنځي کوچني اختلافات یې شاته اوددې ستونزې دحل لپاره یې یوبل ته لاسونه ورکړل نوهم به داغیارو دمداخلولار ونیول شي اوهم به په راتلونکي کې دښو روابطو د پیل کېدو لپاره لارې خلاصې شي گینې ددواړوترمنځ به اختلافات نور هم پسې زیات شي اودټولې سیمې په سطحه به دامریکا ،نور لویدیځ او داسرائیلو دشومو اهدافودپلي کېدو یوه بله ستره دروازه پرانستل شي چې بندېدل به یې بیا ددې دواړو هېوادونوپه شمول دسیمې دټولو هېوادونو دتوان نه بهر وي.

## دملا برادر اخند له ولولو ډک

# او فاتحانه خلاصون!!

د ورځې لیکنه الاماره سایټ

دمتعال رب جل جلاله په خاص مرحمت او د مخلصو او متدینو مسلمانانوددعاګانوپه برکت د اسلامي امارت پخواني مرستیال اودشجاعت اواخلاص دنګ منار محترم ملابرادر اخند له شاوخوا ۹ کلن زندان تیرولو څخه ورسته په خیراوعافیت ازاد اوله خپلي کورنی سره یوځای شو.

ښاغلی ملاعبدالغني برادر چې داسلامي امارت په تاسیس او هم یې دامریکایي یرغل په وړاندې د روان جهادپه پیلولو او انسجام کې کلیدي او بارز رول درلود په هغو سربیره دروسانوپه خلاف دافغان ولس دبرحق جهاد دهغې سربکفه جبهې نظامي مسؤل هم پاتي شوی چې مرحوم عالیقدرامیرالمؤمنین ملامحمدعمر مجاهد نورالله مرقده یې مشري کوله.

محترم ملابراداخنداومرحوم ملاعبیدالله اخند چې دعالیقدر امیر المؤمنین مرحوم ملامحمدعمر مجاهد له لوري په ۲۰۰۳ کال کې رسما د اسلامي امارت دمرستیالانوپه توګه ټاکل شوي وودوئ او ورسره نورومشرانو په داسې حالاتو کې دامریکایانو او متحدینو په خلاف دسپیځلي جهاد او دهیواد دخپلواکۍ ګټیولو معرکه منسجمه او رهبري کړه چې د هیواد لروبر دامریکا او ناټو یونیم لک وحشي پوځیانو او د هغوئ زرګونو جاسوسانوپه سراخیستی وو ، امریکایانو دخپلي قاتلي تکنالوژۍ او الوتکو په مټ دافغان ولس په قتل عام او ربړولو پیل کړی و اوپه وړاندې یې ټوله نړۍ، سیمه اوګاونډ چپه خوله اویاورسره همکاروو

داسلامي امارت سربکفه مجاهدینوچې په خپلوجهادي تکتیکونو او بریدونو یې دامریکازړه اوځګرورخوړلی وونوله نورو وحشي تګلاروسره یوځای په دې لټه کې شول چې داسلامي امارت د قیادت موندلو او نیولو ته ځان ورسوي ، له ډیرواستخباراتي هڅو او نیرنګونو ورسته یې دخپل خاص څارګرټیم په وسیله ونیول.

امریکایانو او ملګرویې دافکرکړی وو چې دملابرادر اخند او ملا عبیدالله اخند په نیولو سره به له یوې خوا داسلامي امارت په قیادت کې کلکه خلا ایجادکړي او په صفوفو کې به یې ګډوډي رامنځته کړي له بل لوري به داسلامي غرور او میړاني دغه هستی دډول ډول فشارونو او حربو په نتیجه کې دیته اړکړي چې یوې معاملي ته ورسره ورسیږي اوروان جهاد ته الله مکړه کلک ګوزار ورکړي.

خودوی خبرنه ووچې داسلامي امارت له مشرانونیولي ترعادي مجاهداوفردپوري که دټولي دنیاامتیازات او دعیش نوش هرډول ابزار یې مخته کیښودل شي اویاله هرډول تکلیفونوسره مخ شي هیڅکله به له خپلې پاکي داعیې او تګلاري څخه تیرنشي او دیوې لحظي لپاره به هم کومي ناولي معاملي ته سرښکته نکړي

دمعلوماتوله مخې ۹۵ کلن زندان په اوږدوکې امریکایانو په کراتومراتوله محترم ملابرادراخند څخه غوښتنه کړې چې دکابل رژیم اوطالبانوترمنځ په هغې سولې اوجوړې کې رول ولوبوي چې دوئ یې طرحه ریزي اوپلان جوړکړي؛ خوددغو ټولو حربو اوفشارونوپه وړاندې دملا برادر اخند دریځ اوځواب داوه چې ابدي زندان تیرولو ته چمتویم خو داسلامي امارت دلوړو دیني مصالحو او پاکي داعې په سرله چاسره جوړجاړي اویاکومې معاملې ته تیارنه یم.

دمحترم ملابرادر اخند دغه عزم اواستقامت او د مظلومو او متدینو پرګنو اومجاهدینو دعاګانو اخیر رنګ راووړ او په هسکه غاړه له زندان نه راووت.

اسلامي امارت په داسې حال کې چې دخپل نومیالي مشر ملا عبدالغني برادر خلاصون دافغان مجاهدولس لپاره سترزیری ، لویه بریا او په باطل باندې دحق غلبه بولي باور لري چې دنوموړي له خلاصون سره به د اسلامي امارت متحد او منظم صف ته نور قوت اونوی روح ورو‌بښل شي (ن شاء الله تعالی)

# په شریعت کی د مزدور حقوق

د مزدورانو لپاره چه اسلامې شریعت کوم اخلاق ،هدایات او قانونی اصول تعین کړي که عملی شي نو د مزدورانو حق به نه ضایع کیږي اوپه دوی به ظلم نه کیږي.

اسلامی هدایات

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایي: د مزدور اجورت (تنخا) د هغه د خولو وچیدو نه مخکې ورکړه.

اَعطُوا الاَجِیرَقَبلَ اَن یَّجُفَّ (ابن ماجه )

که چا مزدورې ورنه کړه یایې کمه ورکړه یا یی بغیر له عذر نه ټال پکی وکړ نو د هغه په باره کښی نبی علیه السلام فرمایې

چه د قیامت په ورځ به زه د کومو دریو کسانو په خلاف مدعی یم په هغه کې به یو هغه کس وی کوم سړی چه مزدور ونیسي او د هغه نه پوره کار واخلی مګر مزدوري  پوره نه ورکوي.

رَجُلُ اِستَاجَرَ اَجِیراً فَاستَوفی مِنهُ وَلَه یُعطِه اَجرَه (بخاری)

همدارنګه نبی علیه السلام فرمایی:

دوی ستاسو وروڼه دی چه خدای ج ستاسو ماتحت کړی دی نو چه د چا ورور د هغه ماتحت شي نو هغه لره پکاردی چه څه خوری هغه مزدور لره هم ورکړي  چه څه اغوندې هغه لره یې هم ور واغندی او د هغه نه داسې کار نه اخلی چه هغه باکل مغلوب اوبې وسه شی که د هغه نه سخت یا زیات کار اخیستل وي نو په هغه کې ورسره مدد کوی.

هُم اِخوَانُکُم جَعَلَهُم اللهُ تَحتَ اَیدِیکُم فَمَنجَعَلَ اَخَاهُ تَحتَ یَدِه فَلیُطعِمه مَمَّا یَاکُلُ وَلیَلبَسهُ مِمَّا یَلبَسُ وَلاَ یُکَلفَه مِنَ العَمَلِ مَایَغلِبُه فَاِن کَلَّفَه مَا یَغلِبهُ فَلیُعِنه عَلَیه (بخاری مسلم)

همدارنګه نبی علیه السلام فرمایی:

د دوی حفاظت داسې کوی لکه د خپلو اولادونو چه کوی اوڅه چه تاسی خوری هغوی ته هم هغه ورکوی.

وَاَکرِمُوهُم کَکَرَامَةِ اَولاَدِکُم وَاَطعِمُوهُم مِمَّا تَاکُلُونَ (مشکوة)

نبی علیه السلام سره د دی مظلومی طبقی دومره خیال وو چه د وفات په مرض کې کوم آخری نصیحتونه چه وفرمایل په هغو کې یودا ؤ چه د لمانځه او خپلو ماتحتو (لاس لاندی خلکو) ډیرخیال ساتی.

اَلصَّلوةُ وَمَامَلَکَت اَیمَانُکُم

یو صحابی پوښتنه وکړه چه که یو ملازم یا مزدور غلطی وکړی نو څو ځله د هغه معافی کول پکار دي هغوی (ص) د دی څه ځواب ورنکړ دوهم ځل یې بیا همدا پوښتنه وکړه هغوی (ص) بیا هم چوپ پاتی شول په دریم ځل یې پوښتنه وکړه نو رسول الله (ص) وفرمایل

کُلَّ یَومِ سَبعِینَ مَرَّةً / ژباړه : که اویا ځله غلطی وکړی نو معاف کوه یی ....ابوداؤد

د مزدور مسئولیتونه یا ذمه واری:

۱ -د شوی معاهدی یا قرارداد مطابق به په قانونی او اخلاقی ډول کار سر ته رسوي.

۲ -مزدور په شان د یوه امین وي باید د خپل ورسپارل شوي کار او د کار لپاره سامان دواړو حفاظت په پوره ایمانداری وکړي که کوم څیز اتفاقاً خراب شي نو د هغه تاوان په مزدور نشته خو که قصداً خراب شي د هغه تاوان به ورکوی.

۳ -که کاریګر یا مزدور د مالک د هدایت خلاف کار وکړی او خراب شی پداسی حالت کی به تاوان ورکوي.

۴ -د څومره ورځو یا څومره کار لپاره چه کوم معاهده یا قرارداد شوی وي اجیر ته دا حق نشته چه مخکې د هغه له ختمیدو بغیر له کوم غذر نه کار پریږدی.



# افغانستان کې د امریکا شکست ولې یقیني دی؟

(مفتي ابوسعد ممله وال)

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم امابعد!

څوکلونه وړاندې امریکایانو او دهغوی متحدینو د داخلي مزدورانو په رهنمایي په افغان مظلوم ولس دصلیبي یرغل په تسلسل کې دجبر ، ظلم ، او وحشت توره راپورته کړه . اوغوښتل یې چې دافغانانو عقاید ، افکار ، فرهنګ ، استقلال ترخپل استعمار لاندې راولي .

پدې یرغل کې دوی دهر قسم حربې څخه کار واخیست ، خو د دوی دغه یرغل او دغه نه هیریدونکې شومې کړنلارې مختلف مراحل طی کړل .

په ابتداء کې خو دوی خپلو شومو اهدافو ته د رسیدلو لپاره یو څه نرمي اختیاروله په جنګي ډګر کې یې ډیره مهمه اسلحه نه کاروله او تهاجمي قتل عام یې هم نه کولو . اګر که د خپل عادت له مخې یې ځینې تهاجمي قتل عامونه وکړل خو عمومي نه وو.

په دې مرحله کې د دوی دنظامي جنګ په نسبت سره تبلیغاتي جنګ ډیر تیز وو او په همدې جنګ یې غوښتل چې دافغانانو مرال له منځه یوسي . دا ډیره سخته مرحله وه ځکه چې یو طرفته نظامي جنګ هم تیز وو او بل طرفته یې خلک په تبلیغاتو سخت مصروفه کړي وو . همداوجه وه چې ډیر لوی لوی علماء اوملایان دوی په خپل مکرجن جال کې راګیر کړل او خپل مقصد یې پرې تحمیل کړ .

په دې مرحله کې دافغانستان اکثره سلنه خاوره د دوی تر ولکې لاندې راغله او په هوسا ډول به پکې ګرځیدل او دعوامو سره به یې اختلاط هم کولو ، او دمسلمانانو د دوکه کولو لپاره به یې د اخلاقونه کار اخستلو همدا وجه وه چې نړۍ والو او همداراز داخلي ګوډاګیانو به ورسره دتمرد شعارونه بدرګه کول .

دوهمه مرحله : د دې نه بعد چې دوی پوه شول چې افغانان د چا تپلې شوی نظام نه مني او په معمولي فشار سره له خپل دین څخه نه اوړي نو په دوهمه مرحله کې دوی په نظامي ډګر کې یو څه شدت لاپسې زیات کړ او دنظامي جګړې تر څنګ یې فکري جګړه نوره هم ګرمه کړه . او هغه جنګي ټکنالوجي چې دوی د دریم جنګ جهاني لپاره تیاره کړې وه هغه یې په پراخه او علني ډول سره په افغانستان کې وکاروله مثلا تر ټولو غټ میزایل کروز ، او ترټولو غټ بم دبمونو مور ، او ترټولو تیز میزایل ډرون ، او ترټولو غټه الوتکه b:52 ډوله ، وغیره .



او د دی ترڅنګ به یی خپل جنرالان پداسی ډول سره تبا دله کول چی هر وروستنی به داولنی په نسبت سره زیات متمرد او سرکشه او کبر جن او وحشي وو او دکبر او دغرور لاپی به یی وهلی مثلا:

په ۲۰۰۹ کال کی جنرال (ډیوډ میک کیمن) ویلی وو چی امریکا په افغانستان کی شکست نه شي خوړلای او دی ته ورته وینا د ده پسی بل جنرال (ډیوډ پټریاس) هم وکړه او همدغه شان وینا ګانی (جنرال جوزف) او جنرال (جان کیمبل) هم وکړی . دوی ویل چی دامریکا کامیابی یقینی ده او طالبانو شکست خوړلی دی .

خوچی کله دغه لیونی سپی د اسلامی امارت دمجاهدینو له خوانه دتندریزو بریدونو سره مخ شول . اودخپلو فوجیانو غوښی او هډوکی یی دبمونو په غبار کی ولیدلی او مات ګوډ فوجیان یی امریکا ته دمعیوبیت په حالت کی واپس شول او د دوی د کرایه شوو مزدورانو ټوټی هم دبمونو ښکار شوی حتی چی دامریکا لوی درستیز (جنرال جوزف ډنفورډ ) او ویل چی دافغان عسکرو دمرګ ژوبلی خبرونه دخپریدلو وړ نه دی او همداراز په دوی باندی دمحاصری کړی راتنګیدل، ولایتونه او ولسوالي او لوی پراخه سیمی د دوی دلاس نه وتل ، د دوی دنصب شوی اعضاء لخوانه د دوی مخالفت څرګندیدل لکه کرزی چی تړون لاسلیک نه کړ ، همداراز دولسی جرګی لخوانه دتړون لغوه کول او وخت په وخت دوزیرانو استعفاګانی ورکول ، داخو خو لاڅه چی دوی دیوی هډی نه تربلی هډی پوری په زمکه تلل نه شی کولای بلکه په الوتکو کی ګرځی او همداراز د داخلی مزدورانو سره دملاقات او اختلاط ممانعت کول او همداراز په خپلو کی سره بی اعتمادی.

دغو احوالو دی ته اړ کړل چی دسولی او دخبرو اترو لوری خپل کړی او هر طرفته چی دسولی دڅرک احساس وکړی نو (کانهم الی نصب یوفضون ) ژباړه : ګویاکه دوی خپلو بتانو طرفته منډی وهی .

همدا وجه وه چی دسولی په نوم یی په کابل، سعودی، جاکارتا کی، دبعضی مستشرقینو علماء په موجودیت کانفرانسونه تر سره کړل ، اوګڼ علماء سوء یی استخدام کړل .

همداراز په ۲۰۱۸ کال کی داګست په ۲۳ نیټه د غاصبو بهرنیو فوجونو قمندان جان نیکولسن ویلی وو چی د

ړمپ دستراتیژی اساسی ټکی په سیاسی روغه جوړه ټنګار دی .

اوپه ۲۰۱۸ کال کی داکتوبر په ۳۱ نیټه دامریکی د دفاع وزیر (جیمز متیس) اوویل چی دافغانستان سوله دامریکی تر ټولو ستره موخه ده .

او همدا راز دناټو عمومی قمندان جنرال (سکاټ میلر) هم وایی چی دافغانستان جګړه نظامی حل نلری . دا په داسی حال کی وایی چی کله دی څو ورځی مخکی دامارت اسلامی لخوا دفلان شوی استشهادی تندریز برید نه په تیښته شپی سپکی کړی ، او د ده ملګری متمرد مزدور دکندهار دمزدور رژیم دامنیی قومندان جنرال رازق پکی اووژل شو .

د دوی دغه تنزل او سرټیټی په ډاګه کوی چی بفضل الله والحمدلله دوی تقریبا دشکست په درشل باندی ولاړ دی او دوی لکه د لیونی سپی په شان ګنګس او سرسام شوی دی په دی هم نه پوهیږی چی زمونږه په قول او فعل کی څومره تضاد دی او نړی د دوی دغه خرافاتو ته څومره متوجه ده .

چی یو طرفته قتل عام کوی مدارس ، ودونه ، جنازی، زنانه ، بوډاګان ، ماشومان یی هم معاف نه کړل او شهیدان یی کړل او په علنی ډول سره یی دبشر ټول حقوق تر پښو لاندی کړل .

نتیجه داشوه چی هغه نهایی طاقت چی دوی دټولی نړی دتسخیر دپاره مهیا کړی وو الله تعالی نړی ته راښکاره کړ او دکمزورو افغانانو په تشو لاسونو اوکمزورو اسلحو باندی یی داسی نیست او نابود کړ چی ټولی صلیبی نړی ورڅخه دعبرت درس واخیست ،

دا دوی هغه احوال دی چی افغان ولس بالمشاهده او ټول نړی وال یی په ژوندی بڼه دمیډیا په واسطه سره وینی .

خو که د دی عینی فتحی ترڅنګ داسلام ستر مفکر او د بشر لارښود (صادق المصدوق) محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاداتو ته رجوع وکړو نو د دی جنګ ترشاه داسلامی امت مجاهدینو ته دفتح او کامیابی په اړه یو عظیم الشان بشارت موجود دی چی پکی دصلیبیانو او دهغوی دګوډاګیانو شکست او ناکامی په حتمی ډول په ډاګه شوی ده .

حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، عَنْ نَافِعِ بْنِ عُتْبَةَ،قَالَ:كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،فِي غَزْوَةٍ،...قَالَ:«تَغْزُونَ جَزِيرَةَ الْعَرَبِ فَيَفْتَحُهَا اللهُ،ثُمَّ فَارِسَ فَيَفْتَحُهَا اللهُ،ثُمَّ تَغْزُونَ الرُّومَ فَيَفْتَحُهَا اللهُ، ثُمَّ تَغْزُونَ الدَّجَّالَ فَيَفْتَحُهُ اللهُ» قَالَ: فَقَالَ نَافِعٌ: يَا جَابِرُ، لَا نَرَى الدَّجَّالَ يَخْرُجُ، حَتَّى تُفْتَحَ الرُّومُ .

ژباړه : رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی چی تاسو به غزا کوی په جزیرة العرب کی پس الله تعالی به یی فتح کړی بیا به دفارس سره جنګیږئ الله تعالی به یی فتح کړی بیا به غزا کوئ د دجال سره پس الله تعالی به یی فتح کړی . پس نافع اوویل چی ای جابره فکر نه کوو چی دروم دفتح کیدلو نه مخکی به دجال راوځی .

فایده : دا او د دی پشان نو ر احادیث مبارکه پدی دلالت کوی چی الله تعالی به دفتحو لړی پیل کړی او دمسلمانانو ارزو ګانی به پوره شی . ممکن چی په دی فتح کی تاخیر هم د همدی وجی نه راغلی وی چی په حقیقت کی دامریکا شکست دټولی صلیبی نړی شکست دی.

البته دی جنګ کی دثبات استقامت او بصیرت نه کار اخستل پکار دی انشاء الله فتح دمسلمانانو یقینی ده هم مشاهده پدی دلالت کوی او هم دصادق المصدوق ارشادات په دی دلالت کوی.

# تجاوز امریکا بر افغانستان

## در ترازوی حقوق بین‌الملل امروزی

احمدخان

هفتم اکتوبر ۲۰۰۱ یک روز سیاه و نگون‌بخت در تاریخ افغانستان می‌باشد. روزی‌که امریکا و هم‌پیمانان شان بسان گرگ‌های گرسنه همه با هم برین ظرف غذایی(افغانستان) حمله نموده و تا امروز و هنوز نفسِ سیری نکشیدند.

تمرکز این نوشته روی معیارها و قضاوت‌های فقهی و شرعی این قضیه نمی‌باشد؛ چون به روشنی‌ها نمی خواهم روشنی انداخته شود. و نه این نوشته با سبک توصیفی صرف به شرح و چگونگی حمله امریکا به افغانستان پرداخته است. بلکه موضوع این نوشته سنجش و وزن نمودن حمله بر افغانستان در روشنی معیارهای حاکم جهان دموکراتیک و سرمایه‌داری می‌باشد؛ تا واضح گردد که سرمایه‌داری چگونه این جهان را با ساختارها و ارزش‌های واهی فریب داده و با قرار دادن منفعت منحیث معیار عمل و عکس‌العمل خویش بسان همان بت‌پرستانی عرض وجود کرده است که از خُرما، بت و خدا ساخته و امّا هنگام منفعت و مصلحت خویش به خوردن آن می‌پردازند.

از بزرگترین نهادهای که در قرن بیست در جهان سیاسی شکل گرفت سازمان‌های بین‌المللی بودند که با شکل‌گیری جامعه ملل و ملل متحد حتّی بینش سیاست اندیشان و سیاست‌گران را نسبت به روابط بین‌الملل دگرگون ساخت. حالا نمی‌خواهم که روی فلسفه وجودی، اهداف پت و پنهان این سازمان‌ها که چگونه به اساس بینش کپیتالستی و منفعتِ قدرت‌های استعمارگر شکل گرفته و نفوذ پیدا نمودند تمرکز نماییم. اینجا خصوصاً در روشنی قواعد حقوق بین‌المللِ امروزی و منشور ملل متحد که از نظر کیفیت و کمیتِ متعهد به آن، بزرگترین دستاور جهانِ سرمایه‌داری و دموکراتیک شناخته می‌شود؛ حمله ۷ اکتوبر غربی‌ها بر افغانستان را تجزیه و تحلیل می‌نمایم.

در ۱۱ سپتامبر ۲۰۰۱ سه طیاره از میدان هوایی داخل امریکا پرواز نموده و به برج‌های تجارتی نیویارک و ساختمان پنتاگون حمله نمودند؛ که در نتیجه حدود ۳ هزار نفر درین حادثه کشته شدند. هیچ دولت، گروه یا فردی مسؤلیت این حمله را به عهده نگرفته امّا حکومت بوشِ پسر، القاعده را متهم نموده و حکومت طالبان را مکلّف به تسلیمی آنها می‌نماید؛ و جنگ امریکایی اولین و آخرین فیصله کننده میان این دو خواهد خوانده می‌شود.

امریکا در همان روزیکه به افغانستان حمله را آغاز می‌نماید نامه‌ی به شوری امنیت سازمان ملل جهت گرفتن جواز این عملکرد خویش فرستاده و اساس این عمل خود را با توجیه از ماده ۵۱ منشور ملل متحد نموده که موضوع این ماده روی "دفاع شخصی" دولت‌ها می‌چرخد. شوری امنیت ملل متحد با گذشتن بیش از یک ماه بعد از حملات نظامی امریکا بالای افغانستان، دو قطعنامه با شماره‌های

(۱۳۷۷) و (۱۳۷۸) صادر نموده که بازهم هیچ نوع تذکّر و تاییدی از حملات نظامی امریکا بر افغانستان درآن نشده بود؛ اما بازهم حملات ادامه داشت.

موارد بیشتری در منشور ملل متحد، قواعد حقوق بین‌الملل، معاهدات و کنوانسیون‌های بین‌المللی وجود دارد که به اساس آن تجاوز بر افغانستان را خلاف همه این موارد و قواعد وضع شده ثابت می سازد. امّا جهت کوتاه نمودن این عنوان و برای راحتی خواننده به یکی ازین موارد که خود ایالات متحده در نامه‌ای به آن استناد نموده می‌پردازم؛ که این استناد همانا ماده ۵۱ این منشور با موضوع "دفاع شخصی" می‌باشد.

امریکا حمله خود را تحت عنوان "دفاع شخصی" توجیه نموده و این عمل خود را مستند به ماده ۵۱ منشور ملل متحد می داند؛ این ماده چنین صراحت دارد: "در صورت وقوع حمله مسلحانه علیه يك عضو ملل متحد تا زمانيكه شوراي امنيت اقدام لازم براي حفظ صلح و امنيت بين‌المللي را به عمل آورد هيچ‌يك از مقررات اين منشور به حق ذاتي دفاع از خود، خواه فردي يا دسته جمعي لطمه‌اي وارد نخواهد كرد. اعضاء بايد اقداماتي را كه در اعمال اين حق دفاع از خود به عمل مي‌آورند فوراً به شوراي امنيت گزارش دهند. اين اقدامات به هيچ وجه در اختيار و مسئوليتي كه شوراي امنيت بر طبق اين منشور دارد و به موجب آن براي حفظ و اعاده صلح و امنيت بين‌المللي و در هر موقع كه ضروري تشخيص دهد اقدام لازم به عمل خواهد آورد تاثيري نخواهد داشت."

دفاع مشروع و شخصی از مواردی است که در عرف، قانون و مذاهب از آن تذکّری رفته که حوزه شخصیت‌های حقیقی و حقوقی را شامل می‌شود. امّا اینجا در روشنی این منشور و عرف حاکم بین‌المللی دفاع مشروع و شخصی را با شرایط آن وضاحت می‌دهم.

علمای حقوق بین‌الملل امروزی در روشنایی مواد منشور این سازمان که تمرکز آن روی حملات دولت ها – آن‌هم دولت‌های که مشروعیت بین‌المللی داشته باشد- نه گروه‌ها و افراد، دفاع مشروع را شرح داده و در استناد به عرف حاکم بین المللی اشاره‌هایی به شرایط دفاع شخصی داشته اند.

دفاع شخصی به اساس حقوق بین‌الملل امروزی و در روشنایی مواد این منشور دارای این شروط عمده می‌باشد که ذیلاً در چند شماره آنرا وضاحت می‌دهم.

-۱حمله باید همزمان با تهدید باشد؛

این واضح است که افغانستان هیچ دخلی اعم از لحاظ زمانی و مکانی درین حمله نداشته و حمله بالای افغانستان هم پس از حادثه ۱۱ سپتامبر که از داخل خود امریکا صورت گرفته بود، بتاریخ ۷ اکتوبر ۲۰۰۱ آغاز گردید.

-۲از دولت مقابل تهدیدی متصور باشد؛

افغانستان چه دخالتی در حمله ۱۱ سپتامبر داشت؟ آیا از سرزمین افغانستان برای امریکا تهدیدی متصور بود؟ در حالیکه علمای حقوق امروزی این تهدید را بشکل یقینی آن تعریف می‌کنند؛ نه حدس و گمان. پاسخ برای این همه منفی است؛ چون نه طراحی حمله در افغانستان صورت گرفته بود، نه طیاره‌ها ارتباطی به ملکیت افغانستان داشت یا از افغانستان پرواز نموده بودند و نه همه از آن ۱۹ شخصی که این حمله را انجام داده بودند تابعیت افغانی داشتند. در غیر آن این حمله جز انتقام چه چیزی بوده می تواند؛ درحالیکه در استناد به همین ماده ۵۱ منشور "انتقام" یک عمل خلاف اصول و قواعد بین‌الملل می‌باشد.

-۳بغیر از گزینه جنگ، گزینه دیگری موجود نباشد؛

یعنی اینکه در دفاع شخصی مستقیماً نباید به جنگ متوصل شد؛ اگر گزینه‌های دیگری وجود داشته باشد. اصول حقوق بین‌الملل و ماده ۲ منشور ملل متحد به این مسأله تأکید می‌کند تا منازعات را بشکل مسالمت‌آمیز و از درِ مذاکره حل نمایند. برای همین است که قبل از گزینه جنگ این قواعد به اسالیبی چون توصیه، مذاکره، دپلوماسی، تحریم، تهدید به جنگ و بالآخره آخرین گزینه‌ی ناچار که همانا جنگ است توسل جویند. امّا امریکا از همان اول به زبان جنگ حرف می‌زد و به هیچ‌نوع

مذاکره و راه‌های دیپلوماتیک آماده نگشت. در حالیکه قبلاً در حادثه ۱۹۸۸ که طیاره‌ای امریکایی در سکاتلند انفجار نموده و سقوط نمود، حدود ۱۷۹ امریکایی کشته شد. درین حمله دو تن متهمین در لیبیا زندگی می‌کردند که امریکا درخواست محاکمه آنها را نموده بود و قذافی به شرط محاکمه آنها در کشور ثالث آنرا پذیرفت.

اما در قبال افغانستان چرا مستقیماً جنگ؟ گویی پلان جنگ از قبل اتخاذ شده بوده.

-٤دفاع به تناسب تهدید باشد؛

آیا واقعاً چنین بود؟ حملات B-52 و استفاده از اسلحه کیمیاوی با چه چیزی تناسب داشت؟ در حادثه ۱۱ سپتامبر حدود ۳ هزار نفر از نقاط مختلف دنیا کشته شدند، امّا در قبال این حادثه، افغانستان با میلیون‌ها کشته و میلیون‌ها زخمی به جبران این حادثه محکوم گشت و این پروژه‌ی باروت و خون تا امروز هم جریان دارد؛ چه تناسبی!

و بالآخره همه حرف‌ها روی این باید خلاصه شوند که شعار صلح و انسان‌دوستی یک ارزش است؛ امّا منفعت و مصلحتِ قدرت‌های کپیتالیست و استعمارگر با ارزش‌تر از همه چیز. پس استعمار، وحشت و ذلّت با چه معیار دیگری قابل توجیه بوده می‌تواند؛ در حالیکه برای توجیه آن هیچ مجالی جز نفاق، فریب و قلدری وجود ندارد. و در اخیر در استناد به همین نهادهای حاکم، به تعریفِ از تجاوز می‌پردازم تا باشد که غرب‌مشرب‌ها در استناد به منابع فکری و سیاسی خود شان، بخوانند و بدانند.

اعلامیه اسامبله عمومی ملل متحد نمبر ۳۳۱٤: "اگر توسط یک دولت به ضد حاکمیت ملی، تمامیت ارضی یا استقلال سیاسی دولت دیگری از قدرت نظامی استفاده شود، و یا عملکردی که مخالف منشور ملل متحد باشد، تعدی و تجاوز پنداشته می‌شود."

پس معلوم می‌گردد که سازمان‌های بین‌المللی، منشورها و قطعنامه‌ها زمانی دارای ارزش است که منافع قدرت‌های بزرگ را تأمین کند، هر زمانی‌که این منشورها و قطعنامه‌ها نتوانند منافع شان را تأمین کند، آن را پایمال نموده و هیچ میکانیزمی جهت محاسبه و به چالش کشیدن این قدرت‌ها نیز وجود ندارد. پس روشن است که در چه جهان کثیفی زندگی می کنیم و باید برای برانداختن نظم فعلی جهانی و تغییر سیاست‌های یک‌طرفه راهی جز مبارزه فکری و سیاسی جهت برچیدن این نظم خونخوار وجود ندارد.

## د مبایل په اړه شرعي هدایات او مسایل

لیکنه: شیخ ضیاء الله حکیمي

لاندې کارونه مه کوئ ناروا دي:

۱ـ د زنګ په وخت کې هلو هلو Hillo ویل مه کوئ ځکه دا د انګریزي او اجنبي فرهنګ برخه ده، بلکې د دی پر ځای «السلام علیکم ...» الفاظ ووایئ.!

۲ـ د مبایل په شیشه دیني لیکنه چې پرې ښکاره کېږي مه پرېږدئ ځکه که لیترین ته ځئ نو بیا خو یې نه شئ وړی.

۳ـ د زنګ لپاره پرې تلاوت ثبت کول بې ادبي او ناروا کار دی.

۴ـ د زنګ لپاره د موسیقی ساز سرود مه پرېږدئ. ساده زنګ، یا شعر یا نظم باک نه لري.

۵ـ په لمونځ کې مبایل په یو لاس بندولی شئ، خو د جیب څخه راویستل بیا ورته کتل مه کوئ ځکه دا عمل کثیر دی، لمونځ پرې فاسدېږي.

٦ـ د مبایل په شیشه د ذي روح تصویر مه پرېږدئ ، ګناه ده.

۷ـ په بدل نمبر چاته زنګونه یا اخطارونه، یا مسیجونه لېږل ناروا دي.

دا لاندې درې نصیحتونه هم مه هېروئ!

۸ـ کوشش وکړئ زنانه او ماشومانو ته مبایل مه ورکوئ خصوصا ځوانو جینکو ته چې د اخلاقي فساد ذریعه ګرځي.

۹ـ چې چاته زنګ وهئ نو د سلام څخه بعد به ته ځان معرفي کوې، هغه ته به نه وایې چې ته څوک یې؟ ځکه زنګ تا وهلی که هغه ستا معرفت وغواړي حقدار دی.

۱۰ـ پټ رازونه اسناد او اسرار په مبایلونو کې مه ساتئ ځکه د افشاء خطر لري.

۱۱ـ پټ راز او خصوصي خبره د مبایل په ذریعه مه کوئ. ځکه کېدلی شي مقابل جانب د ثبت بټن وهلې وي او په تا اسناد جوړ کړي.

# آیا د یوه ولس د ارزښتونو

# او غرور له منځه وړل د ویاړ کارنامه ده؟

م،شفق

الماني ژورنالیست یورګن تودنهوفر پر ۲۰۱۴ کال په خپل یوه اثر «لس ورځې له داعش سره» کې لیکي: »د سپتمبر د ۱۱مې په بریدونو کې ټول ټال تر درې زره کسانو پورې ووژل شول، خو د بوش (زوی) په واکمنۍ کې یوازې په افغانستان او عراق کې د امریکا په جګړو کې تر اوسه (۲۰۱۴) پورې تر درې لکو زیات انسانان وژل شوي دي.«

همدغه خبره ۱۷ کاله پخوا پر افغانستان د امریکا د یرغل روښانه ځواب دی. په ریښتیني معنا افغانستان د یوې داسې پیښې قرباني شو چې په هغو کې د یوه افغان هم لاس نه و.

د ۲۰۰۱ کال د اکتوبر ۷مه پر افغانستان د امریکایي وحشت پیل و چې دا دي پر اتلسم کال یې پښه کېښوده. نن چې د اکتوبر د ۷مې پر برید فکر کوو د الماني ژورنالیست دغه خبره سل په سلو کې ریښتیا ده چې دغه ورځ د ترهګرۍ خلاف د مبارزې نه په ریښتیني معنا نه یوازې افغان ولس بلکې ټولې نړۍ ته د ترهګرۍ، وحشت، وژنو او بربادیو پیل و چې پر افغانستان د امریکایي پوځ له یرغل نه پیل شو. وروسته عراق، سوریې او نورو هېوادونو ته دغه ځپې ورسېدې.

امریکا د سپتمبر د ۱۱مې د خونړیو بریدونو په کسات کې ملامت او سلامت ته و نه کتل، د منظم پروګرام او ستراتېژۍ له مخې را ووتل، د پوځ او څارګرو ادارو تر سیوري لاندې یې د نړۍ په ستراتېژیکو سیمو کې واړول او د ولسونو قتل عام یې پیل کړ.

امریکا د شمالي ټلوالې د پېشمرګانو په مرسته یو پر بل پسې د کابل او کندهار په شمول ټول ښارونه د نړیوال طاغوت د B۵۲ تر سیوري اووحشت لاندې د ټلوالې اوذلیلوقشرو لاسو ته ولوېدل.

اوس د محتاطو شمېرو له مخې په سلګونو زره افغانان په دې جګړه کې قرباني شوي دي او دغه بې تعریفه خونړۍ جګړه نن داسې اوج ته رسېدلې چې د ورځې زموږ له ولس نه تر سلو زیات کسان قرباني اخلي.

د امریکا او ناټو د پوځي او سیاسي حضور شومې پایلې زموږ پر سیاسي چاپېریال ډېرې برالا دي. افغان ولس ډېر ارزښتونه له لاسه ورکړي، ډېر ناوړه دودونه یې د ارزښت په نوم خپل کړي. د ولس د خودۍ او غرور احساس ځپل شوی او دا قصداً شوي دي.

مزدورې او غلام ذهنه سیاسي ډلې را ټوکېدلې، د فساد مافیا د واک او ځواک پر دهلیزونو پښې ټینګې کړې او دا ټول د بهرنیانو د برلاسۍ شومې پایلې دي.

که څوک له امریکایانو پوښتنه وکړي چې له افغان ولس سره مو ولې دومره ستره جفا وکړه؟ د دوی ځواب به څه وي؟

آیا وحشتونه توجیه کېدای شي؟

آیا د یوه ولس د ارزښتونو او غرور له منځـه وړل د ویـاړ کارنامه ده؟

آیا یو آباد وطن پـر هـدیره او کنډوالـه بـدلول سـړیتوب دی؟

امریکایان دې ته ځواب نه لري، خو اردلیان یـې لا لگیـا دي د همـدې وحشـتونو او مـاتمونو دوام تـه لاسـونه پړکـوي! پر داسې سپېره برخلیک سل ځله افسوس دی.

متقاعد امریکایي جـنرال: د امریکـا جگـړې پـه عـراق او افغانستان کې د زرگونو ملکي خلکو ژوند اخیستی

امریکـا پـه عـراق او افغانسـتان کـې مـاتې خـوړلې، خـو امریکایي ولسمشران د دې لپاره چې تاریخ یې کـمزوري ونـه بولي په خپلو مـاتو اعـتراف نـه کـوي او د جگـړې پـر غځـولو پانگونه کوي

جگړه او تاوتریخوالی د امریکایانو پـه ختـه کـې اخښـل شـوي او امریکـایي ولسـمشران خپلـو سرتېـرو تـه د ازادۍ جنگیالیو په خطاب سره هغوی بې پایه جگړې ته هڅوي

کابـل – پـه افغانسـتان کـې د امریکـا لـه اوولـس کلنـې جگړې وروسته بلاخره یـوه متقاعـد امریکـایي جـنرال پـه دې اعتراف کړی چې د امریکایانو له لوري دغه پیل شوې جگـړه له ماتې سره مـخ شـوې او زرگونـه بـې گنـاه خلـک پکـې وژل شوي دي.

د امریکـا د هـوایي ځـواک متقاعـد جـنرال ویـلیم سـټور اشـیا ټـایمز ورځپـاڼې تـه پـه یـوه مقالـه کـې لـیکلي چـې پـه افغانستان،عراق، یمن او منځنۍ ختیځ کې د امریکا جگـړې د اقتصادي گټو او د قدرت د نمایش لپاره پیل شوې دي.

دغه پخواني لوړپـوړي امریکایي پـوځي ویـلي، جگـړه د امریکایانو په ختـه کـې اخښـل شـوې او لـه مـاتې سره سره د امریکا هېڅ ولسمشر نه غواړي چې تاریخ یې کمزوری وبـولي او خپل ځواکونه د جگړې له کرښو راوباسي.

ویلیم سټور لیکلي:« په تاریخي لحـاظ مـوږ امریکایـان خشن او له تشدد ډک خلک یو او غواړو نور خلک هـم زمـوږ په تړاو همداسې تصویر ولـري، مـوږ خپلـو سرتېـرو تـه تـل د ازادۍ د جنگیالیو خطاب کوو، سره لـه دې چـې زمـوږ ډېـری جگړې له ماتې سره مخ دي، خـو د امریکـا هـېڅ ولسمشرـ نـه غواړي چـې تـاریخ یـې کـمزوری وبولي او لـه همـدې املـه د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ هـم د انـه خوښـوي چـې ورتـه وویل شي چې په افغانستان او عراق کې یې جنگونه بایلول«.

دغـه امریکـایي جـنرال وړانـدې لـیکلي چـې د امریکـا پخواني ولسمشر جورج بوش د ترهگرۍ د ځپلو ترنامه لاندې امریکـایي جگـړه پیـل کـړه، خـو وروسـته ثرگنـده شـوه چـې جگړې ترهگري لا پیاوړې کړه.

ویلیم سټور لیکلي چې امریکایي مشران خپلو خلکو تـه وایي چې د امریکا وسـلې د ترهگـرۍ د ځپلـو لپـاره کـاري او ځیرکې دي، خو برعکس دغو وسلو په افغانستان او عراق کې گڼ شمېر ملکي خلک وژلي دي.

نوموړي همداراز لیکلي چې امریکایي سیاستوال تل پـر جگړو ټینگار کوي او سرتېرو ته دا پیغام ورکـوي چـې هغـوی د هېواد اصلي مدافعین دي.

سټور لیکلي:« زموږ سیاسـتوال خلکـو تـه د جگـړې پـه تړاو ناسم معلومات ورکوي او د جگړې د دوام لپاره بېلا بېلې پلمې وړاندې کوي، خو واقعیت دادی چې د امریکا لـه لوري دغه بې پایه جگړې بې پایلې دي، زموږ پوځیانو په افغانستان اوعراق کې ماتې خوړلې، خو پـر جگـړه لاهـم میلیونونـه ډالـره لگول کېږي اړتیـا ده چـې امریکایـان د دې جگـړو د پـای تـه رسولو لپاره راپورته شي او مخالفت ورسره اعلان کړي«.

دې امریکـایي پـوځي ویـلي، پـه امریکـا کـې پـوځي چارواکو ته شته درناوی هم د دې لامل شوی چې حکومتونـه تل د خلکـو لـه احساسـاتو گټـه واخـلي او پـر جگـړه پانگونـه وکړي.

# له محترم ملا برادر اخوند سره تازه مجلس

ملا محمد صديقي

دجمعې د مبارکې ورځې ماښام ناوخته راته يوه ملګري تلفون وکړ او له روغ بړ وروسته يې سمدواره وويل چې سباغرمې ته زما ميلمه يې! ماورته د خپلې ناروغۍ عذر وړاندې کړ خو هغه ډير اصرار کاوه چې خامخا به راځې او په راتګ سره به خوشحاله شې، ما هم ورسره ومنله.

سبا يوولس بجې ټاکلي ځای ته له خپل يوه بل دوست سره يوځای ور ورسيدو، هلته نور ډير ملګري هم راغلي و. پوښتنه مې وکړه راته وويل شول چې ملابرادر راځي، بې حده ډير خوشحاله شوم، نور مې دروازې ته سترګې ونيولې بالآخره دوولس بجې به وې چې درې کسان رادننه شول.

د ښنګ ملګري مې راته غوږ کې وويل چې دا سپين څادر والا برادر دی.

ملابرادر له ښې خوا روغ بړ پيل کړ، زما نمبر چې راغی کوربه زه ورمعرفي کړم زه يې په غيږ کې دوه درې ځلي راټينګ کړم او پوښتنه يې راسره کوله.

له روغ بړ وروسته يو ښنګ ته کيناست او څادر يې له سرنه ليرې کړ، خپل ملګري ته يې اشاره وکړه هغه ورته سپين پاج پګړی يالنګوټه راوړه هغه يې له سر نه تاوکړه او له ملګروسره يې دحال احوال پوښتنه شروع کړه.

لږه شيبه وروسته يې پر يوه ملګري غږ وکړ چې تلاوت وکړي خو مشر ملاصاحب اونورو شهيدانو ته فاتحه ، دعا وکړو له دعانه وروسته يې وويل چې ستاسونه او د ټولو ملګرونه مې غوښتنه داده چې دالله جل جلاله ډير شکر اداکړی چې امارت يې متحد ساتلی، دا د الله جل جلاله عظيم فضل اوکرم دی پر مونږ باندې چې د امارت صف يې واحد اومنظم راته ساتلی دی.

ملابرادر په ډيره نرمه لهجه خبرې کولې او د خبرو په جريان کې يې وويل يې چې په زندان کې تر ټولو زيات دې خبرې ته په تشويش کې وم چې که مشر ملاصاحب وفات شي نو اسلامي امارت ته به څه پيښيږي او دا فکر به مې کاوه چې ښايي د امارت صف په درې څلور مياشتو کې وپاشل شي خو په بار بار يې په دې شکرونه او حمدونه ايستل چې پاک پروردګار ډير رحم کړی چې امارت يې متحد او منظم ساتلی دی.

ملا برادر وويل له څوکلونو وروسته راته په زندان کې د راديو اسانتيا رامنځته شوه چې په خبرونو کې به وويل کېدل چې په افغانستان کې دوه لکه خلک يادرې لکه خلک بې ځايه شويدي، بې کوره شويدي نو وايې زه به ډير ورته زوريدم او دعابه مې کوله چې الله جل جلاله ته رحم راباندې وکړي.

ويې ويل، يو ځل مې خوب ليده چې زه د قندهار په ژړۍ ولسوالۍ کې يم، هلته په خلکو باندې دامريکايانو او غلامانو لطرفه ډير زيات ظلمونه شوي وي، خلک ماته وايې چې دا څه حالت دی راباندې، د امريکايانو اوغلامانو نه شکايت راته کوي، زه ورته وايم چې زما هم پر وس څه ندې پوره، بس فقط لاسونه پورته کړم الله جل جلاله ته او دعا کوم، ټول خلک لاسونه پورته کړي او دعاګانې کوي چې الله جل جلاله مو نور له دې مصيبتونو خلاص کړي.

د هغه خبرو په ټول مجلس خاموشي خوره کړې وه او د ډيرو ملګرو له سترګو د خوشحالۍ اوښکې توييدې ويې ويل يې چې شهيد په جنت کې بار بار تمنا کوي چې الله دنياته مې وليږه چې بيا بيا شهيد شم زماهم دا تمنا ده چې ترڅو اسلامې نظام نه وي قائم شوی بيا بيا دې بندي شم خو خپل مقصد او مسير نه به تير نه شم او خپل پاک وطن کې به بهرني ځواکونه ونه منم.

د ملابرادر تلوسه وه چې د افغانستان د ټولو مجاهدينو حالات ځانته معلوم کړي او له هر ملګري يې ځانته ځانته د خپلې سيمې د مجاهدينو او حالاتو په اړه پوښتنې کولې چې هر ملګري ورته د خپلې سيمې لنډ معلومات ورکړل.

ويې ويل کله چې دلته راتلم نو سر مې خوږيده فکر مند شوم چې ملګرو سره به څنګه مجلس وکړم خو چې کله وايې دلته را ورسيدلم او مجاهدين ملګري مې وليدل دسر درد مې ورک شو ، ډير متواضع انسان وو د مجلس په دوران کې يوکس را دننه شو چې د جسم نه ډير کمزوری وو دی ورته جګ شو هغه چې هر څومره اصرار وکړ چې مه جګيږه خو دی ورته ولاړ سو او ښه په مينه يې روغ بړ ور سره وکړ

او ويل يې چې مجاهدينو ته مې توصيه داده چې مخکې مو دالله جل جلاله په لار کې دوه روپۍ مصرفولې اوس بايد لس روپۍ مصرف کړئ چې مخکې مو په سنګر کې لس شپې کولې اوس بايد مياشت تيره کړئ مطلب خپل جد و جهد څو برابره زيات کړئ چې ژر مو وطن آزاد او وطن وال مو له دې مصيبتونو خلاص شي او ژر تر ژره دالله په ځمکه دالله جل جلاله نظام راشي.

په همدې هيله مو الله جل جلاله ته سپارم

# ټويټر څه او ولې جوړ کړ؟

خامخا يې ولولئ!

ژباړه: محمد عزيز پردېس

ټويټر څه دی؟ بنسټ ايښودونکی يې څوک وه؟ د دې ټولنيزې رسنۍ د جوړولو موخه څه وه؟ دا او نورې ټولې هغه پوښتنې دي چې د دې ليکنې په ترڅ کې به تاسو ته ځواب شي.

ټويټر وروسته له فيسبوک څخه ترټولو زياته ملاتړ لرونکې ټولنيزه رسنۍ ګڼل کېږي او دمګړۍ په ټوله نړۍ کې فيسبوک پسې دويم زيات کاروونکي لري.

ټويټر هغه ټولنيزه او ميکروبلاګي آنلاين شبکه ده چې خپلو کارکوونکو ته دا اجازه ورکوي چې څو د ۱۴۰ – ۲۸۰ کرکټرو پورې پوستونه چې د ټويټ په نامه يادېږي، واستوي او ويې ليکي.

ټويټر د ۲۰۰٦ کال د مارچ په مياشت کې د ( جک دروسي ) له لوري رامنځ ته شو او د همغه کال د جون په مياشت کې ګټې اخيستنې ته وسپارل شو. نوموړې ټولنيزه رسنۍ په ډېرې چټکۍ سره پراختيا وموندله چې په ۲۰۱۲ کال کې يې د کاروونکو شمېر تقريبا ۱۴۰ ميلونو ته ورسېد.

د ټويټر شرکت د امريکې په سانفرانسسکو ښار کې موقعيت لري او ټويټر په ټوله نړۍ کې يو له هغه لسو سايټونو څخه دی چې ډېر کتونکي او ليدونکي لري.

جک دروسي وايي: د ټويټر کليمه مې په ناڅاپي او تصادفي ډول ذهن ته راغله چې دا په حقيقت کې ډېر ښه انتخاب وو. د دې کليمې مانا: د نامرتبطه اطلاعاتو لنډ څنځير او د الوتونکي غږ دی. د يادونې وړ ده چې ټويټر په لومړيو کې د اوډيو شرکت داخلي کارکوونکو لپاره اوډون شوی و، خو د ۲۰۰۷ کال په اکتوبر کې په يو خپلواک شرکت واوښت.

د ټويټر پرمختګ: د ټويټر شرکت ډېر ژر او په کمه موده کې پرمختګ وکړ او پراخ شو. په ۲۰۰۷ کال کې په هرو ۱۵ دقيقو کې ۴۰۰ زره ټويټونه پوست کېدل، دا رقم په ۲۰۰۸ کې ۱۰۰ ميليونو ته ورسېد. په ۲۰۱۰ کال کې د ټويټر کاروونکو د ورځې ۵۰ ميليونه ټويټونه استول او د compete.com سايټ په قول د ۲۰۰۹ کال د جون په مياشت کې ټويټر د ټولنيزو رسنيو په کتار کې درېيم مقام واخيست.

د ټويټر مالي سرچينې : د غير رسمي منابعو له مخې د ټويټر لومړنۍ پانګه له ۱ څخه تر ۵ ميليونو ډالرو پورې وه. کله چې د ټويټر شبکه په کار واچول شوه نو د يو شمېر مالي، صنعتي او څېړنيزو بنسټونو او شرکتونو لخوا د ۵۷ ميليونو ډالرو په ارزښت په نوموړې شبکې کې پانګه اچونه وشوه. ((spark capital ،Union Square Ventures)) او (Insight Venture Partners هغه شرکتونه دي چې په ټويټر کې يې پانګه اچونه کړې ده.

د ټويټر ځانګړنې: ټويټر د نورو ټولنيزو رسنيو په پرتله ډېره ساده او اسانه ده او کاروونکي يې کولی شي چې په ډېرې اسانۍ سره، په چټک ډول او په لنډه موده کې ټويټ وکړي او هغه په ټوله نړۍ کې له ميليونونو نورو کاروونکو سره شريک کړي.

۱- ټويټر خپلو کاروونکو ته دا امکان برابروي څو په لنډه موده کې نوي ټويټونه وکړي او د نورو کاروونکو وروستي ټويټونه په اسانۍ سره وګوري.

۲- د ټويټر هر يو پيغام ( ټويټ ) د ۱۴۰ – ۲۸۰ کرکټرو پورې محدود دی چې په چټکۍ او اسانۍ سره د ليدلو وړ ده او لوستل يې لږ وخت نيسي.

۳- ټويټر خپلو کاروونکو ته د کار د اسانۍ په موخه د ټويټر پيغام بکس هم رامنځ ته کړی دی.

۴- په امريکه کې د لوړپوړو چارواکو، مشهورو څېرو او مهمو کسانو د ټويټونو د ساتلو او خوندي کولو لپاره يوه ځانګړې اداره همدې کار ته ګومارل شوې ده.

۵کله چې د ټويټر يو کاروونکی ډېر فالورز پيدا کړي او په مختلفو برخو کې ګټور، موثق او کره مالومات خپلو مينه والو ته وړاندې کړي، نو د ټويټر له لوري ورته د نوموړي شخص د پروفايل ترڅنګ يوه آسماني رنګه ټکمارک شوې علامه ورکول کېږي



# اوولس کلن اشغال او زر خریده غلامان

ليکنه: سيف الله مجاهد

د نن څخه اوولس کاله وړانـدې امريکا او د هغـوی نړيوالو متحدينو د ستمبر (۱۱) واقعـې پـه بهانـه زمـونږ پـه ګران هيواد افغانستان د ټولو نړيوالو او بشري قوانينو خلاف ناروا يرغل وکړ، زمونږ ځمکه او فضا يې اشغال کړل او دلتـه يې د خپلې خوښې مطـابق داسـې يـو منفـور او فاسـد نظـام رامنځته کړ، چې هغوی ته امريکايې اهداف او شخصي ګټـې تر هرڅه اولويت لري، او تر دې پورته هيڅ قانون ته ژمـن نـه دي دلته دوی او د دوی بـادارانو د عـدالت او ديموکراسـۍ په نامه هغـه وحشـتونه تـرسره کړل،چـې انسانيت ورڅخـه شرميږي،په تاريخ کې يې هيڅ مثال نه ليدل کيږي!

افغانـان لـه تېـرو اوولسـو کـالو راهيسـې د امريکـا پـه مشرۍ د ناټو او صليبي ايتلاف د اشغالګرو لښکرو د جنګـي جنايتونو، ظلم او وحشت په بټۍ کې سـوځي، د کورونـو پـه حريم يې د بې پتـه او بـې تهذيبـه پوځيـانو شـپني عمليـات ترسره کيږي، په خوب ويدې تور سرې، ماشومان، ځوانـان او بوډاګان يې – بـې ګنـاه او بـې موجبـه د امريکـا او نـاټو پـه هوايي بمباريو کې شهيدان کيږي' او په خپلو پاکو وينو کـې لت پت او رغړول کيږي، کورونه يې پـه بمونـو پـه کنـډوالو بدليږي، ځوانان يې د مسلمان او مجاهد په نوم پـه شـهادت رسول کيږي او يا هم زندان ته اچول کيږي، په خپل وطـن او ټاټوبي کې په خپل کور کې ناامنه او بلکواکـه دي، د اشـغال او استعمار توره وريځ د افغانستان د ګـوټ ګـوټ پـه فضـاء کې خپره وهي!! د هېواد او ولس برخليک د پرديو پـه خوښـه ټاکل کيږي.

لنډه دا چې افغان غيرتي ولـس لـه دومـره بـې شـمېره ناخوالو سره مخ دی، چې شـمېرل يـې ناشـوني دي، آخـر تـر څو؟!

ايا اوس هم بې طرفه پاتې شم؟ او کـه د خپـل اولـس د ازادۍ او خپلواکي ترلاسه کولو لپاره متې راونغاړم او کـه د خپل مجاهد ملت د حقه حقوقو د دفاع په خاطر د هغـه چـا ملاتړ څوک چې د خپل بـدن غوښـې د الله تعـالی لـه رضا او خپلواکۍ ترلاسه کولو څخه قربانوي.

افغانان او د هماغو مجاهدو، غيرتي، پـه ديـن او وطـن مينو افغانانو اصيل بچي دي چـې لـه سکندر نـه نيـولې تـر برتانوي او کمونستي امپراطوريو اشغالګرو ځواکونو د غـرور دبدبه يې ماته کړې، او خپله مجاهدپاله خاوره يـې د هغـوی په وينو لړلې او هيواد يې له اشغاله ژغورلی او ازاد کړی، خو اوس متاسفانه د هيواد په يـوه او بلـه برخـه کـې د بمبـار او شپنيو عملياتو له لاسه يوه بشري فاجعه رامنځ تـه کيـږي او په اړه يې د نړيوالو بشري نهادونو چوپتيا نـور هـم وضـعيت خونړی کوي.

يرغلګر د خپلې اولس کلنې مـاتې د پټولـو پـه خـاطر د ليوني سپي په څير هرې خوا او هر څه ته خوله اچوي، له بلې خوا يې زر خريده اجير غلامان هم پـه دې پـوه شـوي چـې د



یرغلګرو لـه شکسـت سره بـه د دوی د ژونـد هـم وروستۍ سلګۍ وي.

له همدې ځایه ده چې اوس دوی ټول ولس ته د دښمن په سترګه ګوري او داسې فکر کوي چې د ټول ولس په وژلـو، ترټلو، زنداني کولو، توهینولو او د هغوی د دیني معتقداتو او ملي ارزښتونو په له منځه وړلو سره به دوی ایله وکولای شي چې بریالي شي.

بله هیڅ لاره پـه نظر نـه ورځـي؛ ځکـه خـو یـې دا ډول وحشـتونو تـه لاس اچـولی، چـې هـیڅ بشـري فطـرت یـې د ارتکاب جرأت نه شي کولای، مګر دا صلیبي متجـاوزین او د هغوی بې ضـمیره افغـاني همکـاران یـې پـه رڼـا ورځ تـرسره کوي. د ولس کور کلی،مدرسه، بازار، کلینـک، ودونـه، غـم، ښادي او دا هر څه بې توپیره د ړندو بمباریو نښه ګرځوي.

د صلیبي یرغلګرو خاصـیت دا دی، کلـه چـې د اشـغال شوو سیمو له قابو کولو نه مایوسه شي؛ نو بیـا هلتـه فقـط او فقط د وحشت له لارې تباهي رامنځ ته کول غواړي.

امریکایي یرغلګـرو هغـه مهـال لـه عراقـه خپلـې پښـې سپکې کـړې چـې هلتـه یـې د اوبـو پـر ځـای د وینـو ویـالې وبهـولې او آبـاد ښـارونه یـې لـه خـاورو سره خـاورې کـړل، همدارنګه یې شام کې تر ژونـدیو انسـانانو مـړي ډېـر او تـر آبادیو یې ویرانې ډېرې کړې.

هغوی غواړي چې په افغانستان کې هم ورته تګلاره پلې کړي او افغان مسلمان ولس ته د تراژیدیو یو ناپایـه تسلسل پریږدي او دې کار ته یې زړه ځکه ښه کړی چې دلته یې هم داسې زرخریده ګوډاګیان موندلي چې تر دوی څو چنده بې رحمه، ماده پرسته بزدله قاتلان دي.

سره له دې چې د افغانسـتان د غلامـانو پـه تـاریخ کـې دومره پسـت فطرتـه غلامـان نـور نـه دي تېـر شـوي لکـه د اوسنۍ دوه سرې ادارې چارواکي.

دومره خواخوږي چې د خپلو بادارانو سره دوی کړې او دومره شدیده دښمني چې له خپل ملت سره دوی کـړې، پـه تاریخ کې یې ساری نه موندل کیـږي، خـو بیـا هـم دا ذلیل ګوډاګیان او یرغلګـر بایـد پـه یـاد ولـري چـې افغانسـتان د مجاهـد ولـس ټـاټوبی دی، دلتـه د ډېـرو یرغلګـرو ککـرۍ خاورو خوړلې دي، د اچې ورځ تر بلې یې د ناکامي مزلونه را لنـډیږي. غـربي او نـور کفـار ټـول پـوهیږي چـې دا د امپراطوریـو هـدیره ده، دلتـه هیڅکلـه د کسـات غشـي بـې اغیزې نه دي پاتې شوي.

# شهید خالد حسن،

## هاغه د واورینو درو مسافر

قاري سعید

د تېرې جمعې په ناوخته مابنام، د ۲۰۱۸ م کال د اکتوبر په ۲۷ مه، یوې امریکایي ډرون الوتکې د پکتیا په زرمت کې یو موټر په نښه کړ او هغه زلمی طالب یې په کې شهید کړ چې له اوس نه اوولس کاله وړاندې د امریکایي اناکونډا عملیاتو په مهال په تپې حالت کې د بې شمېره امریکایي ځارگرو او بمبارگرو الوتکو له هجوم څخه ژوندی وتلی و.

دلته درسره د شهید خالد حسن هغه کیسه شریکوم چې له ده مې اورېدلې او بیا یاداشت کړې وه، گونډې زموږ د پرتمین جهاد د افسانه وزمه حوادثو د یوې وړې نمونې په حیث د تاریخ برخه شي.

امریکایانو د ۲۰۰۱ م کال د مارچ په میاشت کې چې د پکتیا غرونه تر سختو واورو لاندې و، د دې ولایت په شاهیکوټ دره کې په هغو طالبانو عملیات پیل کړل چې دلته یې سنگر نیولی و. ملا خالد حسن چې هغه وخت تنکی ځوان و، د دې سختې غزا له گډونوالو څخه و. هغه خپله کیسه داسې کوي.

د جگړې په مهال یوه ورځ غرمه مهال ملا سیف الرحمن منصور زموږ سنگر (بلال سر) ته راوخوت، د قاري افتخار په نوم یو سواتی مجاهد هم ورسره و. سره له دې چې په موږ فشار ډېر او د ډېر جنگ او بمبار له امله د ټولو ملگرو سرونه خوږېدل خو د مشر په لیدو مو حوصله لوړه شوه. د مشر روحیه ډېره پرځای وه، د جنگ له وضعیت نه راضي و او داسې معلومېده چې په امریکایي تلفاتو یې زړه یخ شوی وي. غږ یې وکړ: څوک به چای تیار کړي.

زه او بهایي جان ( یو مجاهد) لاړو، اوبه مو راوړې،کله چې د گاز ډبې لپاره اطاق ته ورغلو، نو اطاق بمبار نیم نړولی و. خو گاز ډبه مو راوایسته. بېرته راغلو سنگر ته، دلته مو د بمبار او الوتکو تر غرهار لاندې د زیکویک په مورچه کې له مشر (ملا سیف الرحمن منصور) سره چای نوش کړ. مشر تر ماښامه همدلته له موږ سره و، ماخستن ناوخته یې وویل چې ډېر بې خوبه یم، دا ډېر وخت مې خوب نه دی کړی، لږ آرام ځای نه لرئ؟ بیا مو لاندې یوه گاره کې د خوب ځای ورته آماده کړ. شپه یې زموږ تر سنگر لږ لاندې گاره کې شوه. خو د شپې په دې ځای بمبار خورا زور واخیست. گارې ته نږدې بمونه ولوېدل، زما ملگری محمد ایوب شهید شو او زه ټپي شوم. د مرستې لپاره مې څو اوازونه وکړل خو چا ځواب رانکړ. اخر مې له پاسه په ډېر تکلیف ځان لاندې ونښویاوه. د گارې تر خولې ورسیدم. قومندان منصور صاحب چې د نږدې بمبار له امله راویښ شوی و په تیاره کې یې غږ راباندې وکړ، کوم یو یې؟ ځواب مې ورکړ: زه یم، محمد ایوب شهید شو او زه زخمي شوم. بیا یې له نورو ملگرو سره رابطه وکړه او امر یې وکړ چې زخمیان د ایجنسۍ په نوم

شرق اړخ ته یوه غرني مرکز ته ورسوي، ځکه هلته څه بهرني مجاهدین وو چې ورسره ډاکتران هم ول.

دغه وخت زما یو بل ملګری جیلاني هم ټپي شوی وو. موږ یې د ایجنسۍ په نوم مرکز ورسولو، خو هلته هم د علاج وسائل او درمل نه وو. دغه وخت هغې خواته هم بمبار او جنګ زیات شوی و. له قوماندان منصور صاحب سره مو رابطه وکړه، هغه وویل: که روغ یاست پاته شئ اومقاومت وکړئ او که زخمیان یاست، نو هرې خواته چې ځان ایستلی شئ ووځئ.

همدلته مو بله شپه هم په داسې حال تېره کړه، چې سخت یخ و، د واورې له اوربښت سره بمونه هم اوریدل او د خوراک لپاره هم څه نه وو. په سبا د دوو نورو ملګرو بهایي جان او قاري حبیب په همکارۍ موږ دوه تنه زخمیان ( زه او جیلاني) جنوب شرق اړخ ته د ځنګلي غرونو پر خوا روان شوو.په داسې حال چې هیڅ لاره او لوری نه رامعلومېده د پکتیا ولایت د ځدراڼو دغرونو په سلسلو کې د نامعلوم منزل په خوا رهي شوو. له ما او جیلاني سره وسلې وې او دوه نور ملګري ( بهاي جان او قاري حبیب الله) بې وسلې وو.

زما چې زخم ژور و د تګ په وخت کمزوري رابانده راتله، یو شواروز مو څه شی نه و خوړلي، یوازینی خوراک مو واوره وه، خو د واورې خوراک مو هم وروسته ستوني را خراب کړل، د بهایي جان بیا پښې وسوزیدې، په غرونو او ګړنګونو روان وو او سخته واوره هم اوریدله، دا درک هم نه معلومیده چې موږ کومې خواته ځو، د مزل په جریان کې داسې وخت راغی چې زه او بهایي جان له نور تګ څخه ولویدو.، جیلاني او قاري حبیب تکړه وو.

هغوی ته مو وویل چې موږ نور مزل نه شو کولای، نو تاسې ولې له ځان سره هلاکوو، تاسو چې تکړه یاست در روان شئ، شاید یوه کلي ته ځان وباسئ، که موږ ژوندي پاته شوو او سیک را په کې وو، پسې دربه شو او که درنغلو، نو حد اقل تاسو ته خو به دومره درک معلوم وي چې موږ په دې ځای کې پاته شوي یو.

په هر حال جیلاني او قاري صاحب ته مو اجازه ورکړه او دوی لاړل ، زه او بهایي جان پاته شوو، چې ډېر کرار کرار او په متو خوارۍ مو مزل واهه، یو وخت چې ماښام رابریدونکی و، په غره کې مو د ځنغوزیو د ټولوونکو زړه څپره یا ښاله پیدا کړه، له واورې مو همدې ښالې ته پناه وروړه ، سخت یخ و، لوږې او د غرونو مزل مو بدنونه بې سیکه کړي وو.

د یخ د دفع کولو لپاره مو د اور بلولو کوښښ وکړ، د جهادي تعلیم په وخت به موږ ته شهید فدا محمد جواد صاحب همیشه ویل چې ځینې ضروري شیان لکه د اورلګیت کوتی، چاقو او داسې ځیني نور شیان همیشه درسره ګرځوئ چې یو وخت په کار درځي. ما چې خپله چانټه ولټوله، د اورلګیت کوتی مې پیدا کړ. د ښالې په منځ او شاوخوا کې څو غټې غټې لرګي پراته وو. اول مې فکر نه کاوه چې په آسانۍ به اور واخلي، خو چې خلی مې ورته وواهه، لرګي غوړ و او سمدستي یې اور واخیست، په اور مو نور لرګي هم باندې کړل او نږدې ورته کیناستو، په یوه شیبه کې تاوده شوو او حتی ټوله ښاله داسې توده شوه چې د بام واورې یې ویلې شوې او څڅوبی شروع شو. تر سهاره له اور سره ناست وو. بدن مو تود شو او داسې تکړه شوو لکه تازه وینه چې را پکې چلیدلې وي.

تر سهاره همدلته و او سهار چې تر پخوا تکړه شوي وو یو ځل بیا مو مزل پیل کړ، په غرونو کرار کرار واوښتو، دهیڅ انسان پل او نښه نه معلومیده،د لارې درک هم نه و، د ځمکې مخ ټول سپینو واورو نیولی و، موږ هڅه کوله د تللیو ملګرو پل پیدا کړو، خو هیڅ درک یې نه و، یو وخت چې له یوه اړخي واوښتو له لرې مو د مخامخ غره په ډډه کې د منډ په شان لاره تر سترګو شوه، په همدې ګمان ور روان شو خو یقین مو نه و، کله چې ورنږدې شوو او و مو لیدل چې د انسانانو پلونو تیر شوي، داسې خوشاله شوو، لکه لویه ورکه مو چې موندلې وي، همدا پلونه مو پسې واخیستل، چې ناڅاپه له مخامخ لوري قاري حبیب الله راواوښت، چې کله یې په موږ سترګې ولګیدې نو له ډیرې خوشالۍ یې وژړل او سلګو واخیست. دوی غالبا زموږ د ژوند

ډېره تمه نه درلوده. قاري صاحب وويل راځئ، دلته مو يو د امن ځای پيدا کړی دی.

دوی چې له موږ وړاندې دې سيمې ته را رسيدلي وو، نو دلته د سرانې په سيمه کې( چې د مولوي جلال الدين حقاني صاحب اصلي سيمه ده) له يوه مخلص پخواني مجاهد سره مخامخ شوي وو. هغه ورته ويلي و چې که وړاندې لاړ شئ کيدای شي د پاچا خان ځدران له کسانو سره مخ شئ او يا به مو هم هغه امريکايي جاسوسان کشف کړي چې امريکايانو په دې سيمه کې موظف کړي تر څو له شاهيکوټه را اوښتونکي مجاهدين ونيسي- او امريکايانو ته يې په لاس ورکړي. نو ښه دا ده چې له ماسره کور ته لاړ شئ. دوی دا خبره ورسره منلې وه او موږ هم د قاري حبيب صاحب په رهنمايي هماغه کور ته ورغلو.

د کور څښتن نهايت مخلص او مسلمان سړی و، موږ ته يې په کور کې دننه د اوسيدو ځای برابر کړ، په همدې غرمه يې چرگ حلال کړ او ښه ښوروا يې برابره کړه. خو د ډوډۍ په وخت زما او بل ملگري ستوني د ډيرو واورو خوړلو له امله داسې بند و چې خوراک مو نه شوای کولای. کوربنو لکه چې تجربه درلوده، ويل يې اول ځان ښه تود او لږ خوب وکړئ، د ماسپښين له لمانځه وروسته ويده شوو او تر مازديگره مو خوندور خوب وکړ، کوربنو مازديگر بيا دسترخوان وير کړ او هماغه غرمنۍ ډوډۍ يې راوړه، خودا وار مو ډيره ښه وخوړله او ايله پر خپل حال شوو.

کوربانه ډير اخلاصمند او مسلمان خلک معلوميدل، موږ ته يې ويل چې بهر مه وځئ خطر دی، ځکه خلک اکثره بدل شوي، د امريکا جاسوسان هم ډير دي او ځيني خلک د طالبانو سره ضد شوي دي، دوی ويل که خدای مکړه چيغه درپسې راووځي بيا مو موږ هم نه شو خلاصولی،په دې کور کې مو څو شپې وکړې، د کور خلکو به له بهر دا ويروونکي خبرونه هم را رسول چې نن په پلاني کنډو مجاهدين راواوښتل، خلکو وسلې ترې يووړې، يا د امريکا د ملگرو عسکرو لخوا ونيول شول. موږ او دوی به په دې هم مجلس کاوه چې له دې ځايه څرنگه وتلی شو. د کور خلکو ويل چې له دې ځايه مسلح وتل امکان نلري، ځکه خلک مو دستي پيژني او حکومتي عسکر خبريږي. نو د وتلو يوه لاره شته، چې خپلې وسلې دلته پريږدئ او بيا به مو موږ په يوه طريقه وباسو. خو زموږ يو ملگری ډير شکاکي وو، هغه به له موږ سره دا خبره نه منله چې وسلې د کور خلکو ته وسپارو، تر دې وخته موږ خپلې وسلې او چانتې له ځان سره ساتلې وې، هغه ويل چې که وسلې ورکړو هسې نه چې حکومت ته مو په لاس ورکړي. هغه هم ځکه ملامت نه و، چې د کابل له سقوط وروسته داسې ډيرې پيښې وشوې، حتی په دې طريقه ډير خارجي مجاهدين په امريکايانو خرڅ شوي وو، دا کيسې چې هغه وخت موږ تازه اوريدلي وې نو په هر چا شک کيده. خو موږ به چې د دې خلکو اخلاص ليد نو به مو خپل ملگري ته ويل چې دا ډير مخلص خلک دي که داسې څه وای بيا به يې موږ ته پناه نه راکوله. خو په همدې خبرو کې څو ورځې ووتې.

يوه ورځ چې په همدې سره غږيدو د کور والا وويل چې يو کارکيږي چې خپلې وسلې دلته پريږدئ بيا به مو په تياره کې موږ د خوست - گرديز تر لارې پورې ورسوو او له هغه ځايه به په موټر کې گرديز ته لاړ شئ. دا وخت زموږ د يوه ملگري له خولې دا خبره ورووته چې موږ خو والله له تاسو هم لږ لږ ډاريږو چې که وسلې درکړو هسې نه زيان راته ورسوئ. په دې خبره دوی ډير خپه شول او بيا يې ډير شديد قسمونه او تعهد وکړ چې داسې به نه کيږي. د کوروال وويل چې زه درسره د گرديز تر لارې د ميراجان تر دوکانو په شپه کې ځم، هلته مو موټر ته هم پورته کوم، خو په دې شرط چې وسلې دلته پريږدئ، ځکه له وسلو سره هر ځای مشکل درته جوړيږي.

ټينگ تعهد مو سره وکړ او د وسلو د امانت ايښودلو خطونه مو سره وليکل، دوی وويل ستاسو وسلې به له موږ سره امانت وي، چې هر وخت راغلئ در به يې کړو. خو دوسلو د ورکړې په وخت کې ما درې حلقې لاسي بمونه د کوټ په جيبونو کې راسره کيښودل او حتی خپل ملگري مې هم خبر نه کړل. بله

شپه د کور وال تر مخ او موږ ورپسې لـه کـوره ووتلـو، پـه شـپه شپه کې یـې د میراجـان دوکـانو سـاحه کـې د خوسـت – گردیـز سرک ته وایستو، چې میراجـان دوکـانو تـه ورسـیدو د کـور وال زموږ ملگري جیلاني ته مخ راواړاوه، د پنځه سـوو کلـدارو نـوټ یې په لاس کې ورته ونیو او بیا یې په قسم وویل چې په کور کې مو یوازې همدا نغدې روپۍ وې او نورې نه وې، دا درسره واخلـئ کرایـه بـه مـو شي. دا صحنه او د هغـه ناپیژندویـه نـاداره افغـان اخلاص او مسلماني هغه څه وه چې هیڅکله له یـاده نـه وځـي. د میرا جان دوکانو سیمه کې سهار وختي یوه هوټل ته پورتـه شـوو او تر څو چې مو چاې خوړل کوربـه ملگـري را غـږ کـړل چې راځئ موټر تیار دی.

چې را ووتو دوه موټر ولاړل ول، قاري حبیب او بهایي جان ډاټسن ته وختل، زه او جیلاني کاسټر مـوټر تـه پورتـه شـوو چې راسره کوربه ملگری هم و او ویل یې تر گردیزه درسره ځم، کلـه چې وختلو، گورم چې کاسټر کې زیاتره مسـلح کسـان سپاره دي او په لوړ اواز یې د سندرو فیته وراچولې ده. پـه زړه کـې راتیـره شوه چې اوس کار خراب شو، د کور وال ته مي وویل چـې دلتـه راشه، هغه مې ځنگ ته راغی او اندیښنه مې ورتـه وویلـه، هغـه ویل چې دا د پاچا خان ځدراڼ مسلح کسان دي، گردیز تـه ځـي، هلته د امریکایانو سره په گډه د طالبانو په ضد عملیات کوي. پـه موټر کې ځیني د لارې خلک هم ورسره سپاره دي.هـیڅ اندیښـنه مه کوه، زموږ تاسو لپاره تر دې ښه مـوټر نشـته، تـر گردیـزه بـه هیڅوک هم پوښتنه درنه ونکـړي. زه هـم چـې اول ویریـدلی وم دې خبرې لږ مطمئن کړم. خو بیخي عجیبه راته معلومیده، د پاچـا خان زوی عبدالولي د شاهیکوټ په جنگ کې د یوه محاذ مسـؤل و او د دامریکایـانو ملگـری و، اوس بیـا مـوږ مجاهـدین د ده لـه کسانو سره په موټر کـې سـپاره وو او خـو نـه یـې پیژنـدلو. هغـوی گردیز ته روان و تر څو له امریکایانو سره په گـډه د طالبـانو پـه ضد عملیات وکړي. خو خبر نه و چې طالبان ورسره په موټر کـې سپاره دي، د پاچا خان کسانو موټر ته د سندرو کیسټ ور اچولې وه چې هغه وخت تازه امارت سـقوط کـړی و او سـندرې ډیـرې بدې لگیدلې، ځکه زړونه ډیر غمجن و او کلونه کلونه دغـه آواز چا نه و اوریدلی، هغه وخت چې د نوي ځواني احساسات وو یـو ځل خو دومره غوسه راغله چې په زړه کې راتیره شوه، راځـه پـه همدې موټر کې په په جیب کې راسره گرنیټونه وغورځاوه چې د پاچا خان کسان ټول له منځه لاړ شي. خو بیا مې چې کتـل ځینـي عام د لارې خلک هم په موټر کې سپاره وو.

په همدې ډول له ستو کنډو پورته شوو، د بنوزو سیمې تـه ورسیدو، هلتـه مـوټر ودریـدل او مـوږ ښـکته شـو، چـې گـورم پاچاخان ولاړ دی او خپلـو ټوپکیـانو تـه منتظـر وو، پاچـا خـان وویل چې د لارې خلک بیل شئ، موږ هم لـه څـو نـورو کسـانو سره بیل شوو او لږ ساعت وروسته مو ډاټسن مـوټر پیـدا کـړ تـر څو مو گردیز ښار ته ورسوي، چې د گردیز ښار ته رانږدې شوو، گورو چې دخوست لین له پله سره د امریکایـانو پیـره ولاړه ه،لـه خلگو پوښتنې او تلاشي کوي. دلته مې نو تینـگ قصـد وکـړ او د گرنیټ گوزار ته مې ځان آمـاده کـړ چـې کـه یـې وویـل چـې را ښکته شه یا تلاشي را کړه نو وار به وربانـدې مخکـې کـوم. خـو امریکایانو او ورسره ترجمانـانو زمـوږ پـه مـنځ کـې لـه جـیلاني پوښتنه وکړه، چې له کوم ځایـه راغلـې او څـه کـار کـوې. هغـه ورته وویل له گردې ځیرې راغلم، هلته مـې اوزې اخیسـتې. دوی هم وویل چې ځئ. په دې ډول د امریکایـانو لـه تـلاشي هـم تېـر شوو. گردیز ښار ته ورسیدو او له هغه ځایه مـو د زرمـت مـوټر پیدا کړ او خپلې سیمې ته راورسیدو.

(شهید خالد حسن له هغه وخته پوره اوولس کاله نور هـم د امریکایي اشغال په وړاندې جهاد وکړ، دوه ځله بندي او یـو ځـل ټپي شو. تر دې چې آخر یې هم هغسې انجام( شهادت) په نصیب شو چې دغه باعزمه زلمی ورسره ښایېده.

بنا کردند خـوش رسمی بخاک و خون غلطیدن
خدا رحمـت کند این عاشـــقان پاک طینت را

(تقبله الله فی اعلی علیین)

## په افغانستان کې د حساسیت له منځه وړلو پروګرامونه:

# د هغو واقعیت، موخې او پایلې

اجمل تره‌کی

یوه حیله چې لــه شـیطانانو سره ملــه کفـار یـې کـاروي، لـه جګړه‌ییزې تندلارۍ سره د مبارزې په نامه د پروژو عملي کـول دي، چې په انګریزي کې د Counter Violent Extremism (CVE) په نامه یادېږي. زیاتره سفارتونو د دغه ډول پروژو د پلي کولـو لپـاره میلیونونــه ډالــر ځــانګړي کــړي، چــې لــه کورنیــو اجنټـانو او د افغانستان د لاسپوځي دولت سره په همغږۍ او جوړجاړي د خلکـو د ژوند په مختلفو اړخونو کې تطبیقېږي. د دغو پروژو د عملي کولو طریقه پر افغاني ټولنه د څېړنو پر اسـاس ولاړه ده، ترڅـو حساسـیت پاروونکي موضوعات چې د دغه هېواد د مسـلمانانو پـه افکـارو او فرهنګ کې ځای لري، وپېژني.

په دغو حساسیتونو کې کـورني موضـوعات لکـه: د ښـځې او خاوند، خور او ورو اړیکي او یا نورو ټولنیزو موضوعاتو لکـه د نـر او ښځې ګډون، د مسلمانانو تر منځ اخـوت او ورورۍ، د سـیکولر نظامونو پر وړاندې حساسیتونه، په اسلامي خاورو کـې د غـرب لـه بهرنۍ سیاسـته نفـرت او داسـې نـور موضـوعات راتلـی شي. دا ډول افکار د مسلمانانو په اوسنیو ټولنو کې ډېر حساس دي او د یـو دوو مواردو په استثنا چې د یوې ټولنې په عنعناتو او فرهنګ پورې تـړلي دي، په حقیقت کې نور ټول په دیني او عقیدتي مفکورو کې رېښې لري. حتی داسې موضوعات دي چې په دیني نصوصو کې د فریضې تر کچې تاکید وربانديې شوی، لکه: حجاب.

کلــه چــې دا ډول موضــوعات وپېژنــدل شـول، پـه مختلفـو کټګوریو یې وېشي او په مختلفو نومونو د افراطیـت ټاپـه وربانـدې وهي او وروسته له نړیوال تروریزم سره تړاو ورکوي. بیا هڅه کـوي، داسې لارې چارې طرحه کړي ترڅو په تندلارۍ افراطیت باور پیـدا نه کړي، له هغه یې لرې وساتي او د دغه ډول افکارو په مقابـل کـې عادي یا Desensitize شي.

د CVE یـو پروګـرام دا دی چـې قطعـي او متفـق علیـه موضوعات د بحث او مناظرې پر موضوعاتو بدل کړي. هڅـه کـوي چې په رسنیو کې د مقالو، پـه پوهنتونـو کـې د مبـاحثو او د مـدني ټولنو د شبکو په وسیله د رسالو د چاپ له لارې پر دغو موضوعاتو بحث وکړي. کله چې یوه قطعي او ناجنجـالي موضـوع د بحـث وړ شوه، تر دې چې هر سړی وکولی شي چې هغـه نقـد یـا رد او تاییـد کړي، نو دا مفکوره خپل اهمیت له لاسه ورکوي او نور د یوه قطعـي حقیقت په توګه نه منل کېږي.

په دویم قدم کې د دغه ډول موضوعاتو د لاښې پېژندنې لپـاره ترتیب شوي پیغامونه او رسالې د سیاسي او مدني فعالانو، رسـنیو او حتی تبلیغاتي شرکتونـو پـه لاسرسي کـې ورکـول کېـږي، ترڅـو پـه مناسبو فرصتونو کې پـه تـدریجي ډول کـار وربانـدې وکـړي او پـه خاصو شرایطو کې بحث پـرې وکـړي. ښـایي کلـه یـو دوه کسـه د حجاب د لرې کولو پر موضوع خـبرې وکـړي؛ خـو کلـه چـې درې څلور کسه او وروسته یوه ډلـه د حجـاب پـه مقابـل کـې مخالفـت ښکاره کړي، په پایله کې حجاب چې یوه الهي فریضه او پـه افغـاني ټولنه کې یو قطعي ناجنجالي دیني حقیقت دی، پر یوه عـادي چـاره او د نقد وړ موضوع بدلېږي او په پایله کې ټولنه د هغه پـه اړه بې احساسه یا Desensitize کېږي.

دا باید په یاد ولرو چې د کفارو دغو ټولو شیطاني هڅو په لومړیو مرحلو کې د دې خاورې پر پخو عمر لرونکو مخاطبانو کومه نتیجه نه ورکوي؛ خو د دویم او دریېم نسل پر مخاطبانو هرو مرو اغېز کوي او له همدې امله په پوهنتونو او مکتبونو کې پر ځوانانو زیات تمرکز کېږي. ځکه دا مسئله ټولو ته روښانه ده، چې ننی افغانستان د اجتماعي اخلاقو له نظره له ۱۷ کاله مخکې افغانستان ډېر توپیر کړی او دا تغیر داسې ورو و چې شاید ډېر کم خلک ورته متوجه شوي وي او یا هم ښایي هغه مهال ورته متوجه شي چې ډېر عقیدوي او قطعي مسایل په ټولنه کې عادي او غیر حساس شوي وي.

بل ټکی چې مسلمانان باید وربانديې وپوهېږي دا دی، چې کفار په هر حال کې زیاتې پیسې او سختې هڅې دې ته ځانګړې کوي چې مسلمانان بې لارې کړي. مګر د الله سبحانه وتعالی دغه قول ته په کتو دوی په دنیا او آخرت کې له ماتې سره مخ کېدونکي دي:

﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ لِيَصُدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ ۚ فَسَيُنفِقُونَهَا ثُمَّ تَكُونُ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً ثُمَّ يُغْلَبُونَ ۗ وَالَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ جَهَنَّمَ يُحْشَرُونَ﴾[الأنفال:۳۶]

ژباړه :کافران د (خلکو) د بې لارې کولو لپاره خپل مالونه لګوي. هغوی به خپل مالونه مصرف کړي، خو وروسته به یې د حسرت او پښېمانۍ لامل شي او ماتې به هم وخوري. ښکه چې کافران به ټول دوزخ ته راټول کړل شي.

الله سبحانه وتعالی خپل کتاب د بشر د هدایت لپاره رالېږلی، چې په هغه کې یې شیطان د انسانانو ښکاره دښمن معرفي کړی، ترڅو خپل بنده ګان یې د دغه ښکاره دښمن له شره په امن کې وي. هغه سبحانه وتعالی یوازې د دغه دښمن په معرفي بسنه نه ده کړې، بلکې د شیطان هغه حیلې او مکر یې د خپل هدایت په کتاب (قرآن) کې لاډېر روښانه کړي، چې له صراط مستقیم څخه د بنده‌ګانو د بې لارې کولو لپاره یې کاروي.

د شیطان یو مکر د ګناه او ناوړه اعمالو په مقابل کې د حساسیت او نفرت له منځه وړل دي. یعنې مخکې له دې چې یو بنده د ناوړه عمل تر سره کولو ته تحریک کړي، د دغه عمل په مقابل کې د ده حساسیت په تدریج له منځه وړي. له همدې امله الله سبحانه وتعالی په قرآن کریم کې مومنانو ته دستور ورکړی، ترڅو د شیطان په لاره ولاړ نه شي:

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ادْخُلُوا فِي السِّلْمِ كَافَّةً وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ ۚ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ﴾ [بقره:۲۰۸]

ژباړه:اې هغو کسانو چې ایمان مو راوړی! ټول اسلام بشپړ ومنئ او په هر اړخیز ډول پکې داخل شئ او د شیطان د وسوسو پیروي مه کوئ (د هغه په لاره مه ځئ). ښکه هغه ستاسو ښکاره دښمن دی.

د شیطان خطوات یا ګامونه همغه مکرونه دي، چې شیطان یې له مفسدینو او ګمراهانو سره په جوړجاړي د مسلمانانو د غولولو لپاره کاروي. ځکه ډېری وخت ذاتاً خپله همغه عمل په واقعیت کې ښکاره ګناه نه ګڼل کېږي؛ خو بالاخره په خلکو کې په ناوړه ګناهونو او فساد تمامېږي. د خپل ویښتابه او له فتنې څخه په امن کې پاتې کېدو لپاره پر موږ مسلمانانو واجبه ده، چې د کفارو (چې خپله د شیطانانو استازي او ملګري دي) مختلفې حیلې او مکرونه مطالعه کړو او ویې پېژنو. دا مکرونه اوسمهال په اسلامي خاورو په تېره بیا په افغانستان کې د ډېرو سنجول شوو پروژو او پروګرامو په اډانه کې تطبیقېږي. زیاتره د دغه پروګرامونو موخه د امت ځوانان دي، چې د اسلامي نظام د نشت پر اساس یې مناسب فرصتونه او ظرفیتونه نه دي موندلي، ترڅو له خپلو دیني سرچینو سره سم، لازم او دقیق فهم پیدا کړي.

دا پروګرامونه د ډېرو جذابو پروګرامو لکه سوله، زغم او یو بل منل، د کثرت‌ګرا ټولنې جوړولو او نورو جذابو نومونو په اډانه کې تطبیقېږي؛ خو په حقیقت کې دا پروګرامونه د (Desensitization Programs) یا حساسیت له منځه وړونکي پروګرامو په نامه یادېږي. منشاء او نهایي هدف یې په ټولنه کې د منکراتو عادي کول او د منکراتو او استعمارګرانو په مقابل کې د مسلمانانو حساسیت او نفرت له منځه وړل دي.



# دمولاناسميع الحق دردناک شهادت

■ حسن مومند

دمولانا سميع الحق رحمه الله تعالى ټول ژوند ددوامداره جهد نه عبارت و؛ خدمتونه يې د کومې يوې ځانگې اويو اړخ پورې محدود نه ووبلکې هغه به تل ددين په هرې ځانگې اوهر اړخ کې فعال ونو د دومره ستر سړي په اړه زما په څېر دکمزوري سړي لپاره څه اسان کار ندی ؛ حيران يم چې ددمره ستروکمالاتوهراړخيز شخصيت کوم کوم خدمت رايادکړم اوپه کوم اړخ يې رڼا واچوم؟

له نړۍ نه دهرديني عالم رحلت اوترې دټولنې بې برخې کېدل دمسلمانانو لپاره دغم اودټولنې لپاره دتاوان خبره وي خوپه ديني عالمانوکې ځينوته بياالله تعالى دومره لوړمقام ،لوی علم ، داسلام اومسلمانانولپاره دخدمتونو کولو وسيع ميدان ، دديني علوموداشاعت لويه موکه ،دمسلمانانودقيادت لوړاستعداد اوپه اسلامي ټولنې کې سترمحبوبيت ورکړی وي چې وفات يې دالله تعالى دبندگانوترڅنگ دحال په ژبه هر شجر،حجر ځمکه اواسمان هم دعالم مرگ بولي اوټول علماء ،مدارس ،مذهبي مراکز،ديني تحريکونه اواسلامي نهضتونه وربانديې يتيمان شي.

شيخ القرآن والحديث حضرت مولانا سميع الحق شهيدرحمه الله تعالى داسلامي نړۍ همداسې يوسترعلمي شخصيت و نووفات يې په رښتيا چې دعالم مرگ دی .

هغه ددارالعلوم حقانيه اکوړه خټک په نوم داسلامي نړۍ دترټولوسترې ديني جامعې مهتمم ،شيخ الحديث اومشر استاذ و ؛ د ديوبندثاني په نوم يادېدونکې داجامعه هغه جامعه ده چې دجوړېدونه تر ننه يې اسلامي ټولنې ته دديني خدمتونولپاره په لسگونوزره دديني علومو فارغين ورکړيدي اوهرکال پکې دامت په زرونوبچي په ديني زدکړو بوخت وي اودلته يې ديني روزنه کيږي .

مولانا سميع الحق شهيدرحمه الله تعالى دنړۍ په سطحه دهمدې سترې جامعې مسئول اوپه همدې جامعې کې کابو دتېرو٦ لسيزو راهيسې استاذ وچې دا دواړه مسئوليتونه يې اوړه په اوړه په ډېرې کاميابۍ پرمخ بيول .

دستر محدث مولاناعبدالحق رحمه الله تعالى ځوی شهيدمولانا سميع الحق رحمه الله تعالى په خپل وخت کې دغوره صفتونويوه بې مثله نمونه وه ؛ حق پرست ديني عالم و ؛ خورا نامتواديب اودښه قلم څښتن و؛ بابصيرته سياستوال ،دلوړې پايې خطيب اومدرس و؛داستعمار اواستعمارگروسره نفرت اودښمني اودحق جهادسره يې مينه مثالي وه اودا مينه به يې تل په رگونوکې تاوېدله نو يوه وينا به يې هم پر اشتعمار درد اودجهاد له تائيدنه خالي نه وه ؛ مولانا سميع الحق شهيد دقيادت ، سيادت ، خطابت ، خود اعتمادۍ ، خود دارۍ ، خواخوږۍ ،ترڅنگ بې حده زيات زړور سړی و ؛ دلوړوعزايمو اولويې حوصلې څښتن ،ستر

دانشور ، وینښ قاید، دمسلمان ملت په غم غمجن اوپه درد یې سخت دردېدونکی و نو چې دنړۍ په هرګوټ کې به پرمسلمان ظلم کېدلو ده به ترې ځان اونورمسلمانان خبرول ؛ددې مظلوممسلمانانوپه حق کې غږپورته کول اوددې مظلومانومرستې ته مسلمانان را دعوت کول خپل مسؤلیت ګڼلو .

الله تعالی هغه ته دومره لوی جرأت ورکړی وچې په ډېروسختو حالاتو کې هم هغه دجهاد اومجاهد دستاینې ، تائید اوملګرتیانه تېر نه شو.

دارالعلوم حقانیه له پیل نه دعلم، سیاست اوجهاد درې واړو څانګو لوی مرکز و ؛ دسترمحدث مولانا عبدالحق رحمه الله تعالی دوفات نه پس چې مولانا سمیع الحق ته ددې جامعې مشري ورپه غاړه شوه نونه یواځې دا چې دا درې واړه څانګې یې ژوندۍ وساتلې بلکې دې درې واړو څانګو ته یې دومره رشد ورکړچې له امله یې دې مدرسې ته نړیوال شهرت ورپه برخه شو؛ رښتیا داده چې دمولانا سمیع الحق ژوند هم دهمدې درې واړو نه عبارت و.

ددارالعلوم حقانیه دالوی علمي خدمت ، دحق ملګرتیا ،دجهاد تائیداوپکې ونډه به هغه دسید احمد شهید رحمه الله فیض ګڼلو ؛ په ۲۰۰۱م کال کې داو. آر. وای تلویزون اوځینونورو رسنیو سره په مرکه کې هغه ویلي وو چې په کوموځایونوکې سید احمد شهید رحمه الله تعالی قیام کړیدی په هغه ځای کې بیا دعلم اوجهاد چینې روانې شویدي ؛ دارالعلوم دیوبندمدرسه چې په کوم ځای کې جوړه شویده دلته نېږدې چې سیداحمدشهیدرحمه الله تعالی اودهغه مجاهدین ملګري تم شوي وو نو سیدرحمه الله تعالی دغه ځای ته اشاره کړې وه او ویلي یې وچې ددې ځای نه ماته دعلم خوشبوراځي ؛ رښتیا هم بیاوروسته همدلته الله تعالی مسلمانانوته ددارالعلوم دیوبند په نوم

لویه جامعه ورکړه چې دشرعي علومو لویه چینه وګرځېده اوفیض یې په ټولې نړۍ کې خپور شو .

همدې ځای کې چې اوس پکې دارالعلوم حقانیه ده سید احمد شهیدرحمه الله اوملګري مجاهدین یې تم شوي وو اوغالباً همدلته یې دسیکانو سره جنګ هم شوی وچې څو تنه مجاهدین شهیدان شوي هم وو ؛ دهمدې شهیدانوشوومجاهدینو وینې چې ځمکې جذب کړې وې اوږده زمانه پس ترې دحقانې په صورت کې دعلم اوجهاد یوه چینه روانه شوه چې ډېرلوی عالم یې خړوب کړ.

رښتیا چې حقانیه ددې ټولې سیمې لپاره دعلم اوجهادډېره لویه چینه وګرځېده اوډېره لویه سیمه یې سیراب کړه چې له امله یې دټولې کفري نړۍ دسترګو ازغی وګرځېد اودله منځه وړلولپاره یې ډېرې هڅې وکړې خودالله تعالی په فضل او داسبابوپه نړۍ کې دمولانا سمیع الحق کامیاب تدبیرونه ووچې الله تعالی وساتله .

دجامعې دښه نظم ، ښه چلولواودضرورتونودپوره کولولپاره به هغه ډېرې هڅې کولې خودجامعې دعلمي کامیابۍ اوترقۍ لپاره پاملرنه یې ترهرڅه زیاته وه اوددې لپاره هغه دعلم ډېر ستر جبال راجمع کړي وو؛ داستاذانو اوطالبانو اکثریت به ډېرو مواردوکې دده دریځ خلاف دریځ لرلو او غړیتوب به یې دده په ګوند کې نه بلکې دمولانا فضل الرحمن په ګوندکې وخو مولانا سمیع الحق دجامعې په تعلیمي اوانتظامي چارو کې دخپلې خوښې یاناخوښې اودخپل ګوند سره تړاو یانه تړاو ته ځای نه و ورکړی بلکې تل به یې په خپلو شخصي- خوښوناخوښو دجامعې ګټوته ترجیح ورکوله چې دادده داسې وسعت ظرفي وه چې ماله ېېښورنه ترکراچۍ په بل یومهتمم کې هم نه وه لیدلې .

سره له دې چې مولانا سمیع الحق صاحب ددې دومره سترې جامعې مشري په غاړه لرله ؛ هېوادکې دننه اوله هېواد نه بېرون یې ډېر زیات سفرونه کول ؛ په غونډوکې

شرکتونــه اوپکـــې دمسلمانانودلارښـــوونې لپـــاره اوړدې ارزښتناکې ويناوې ؛ دوفـدونوسره ليـدنې ؛ دخپـل سياسي گونـد مشرـې ؛ دنـورودينې تنظيمونوسرپرستې؛ ټـولنيزاو ســياسي مصرـــوفيتونه ؛ دتـــاليف اوتصـــنيف اوســياسي مقالوليکل اودنړی حالات دنبړدې نه څارل اونـور ډېـر څـه وربه غـاړه ووخـوسره ددې ټولوبوختيـاو هغـه ددې جـامعې دحديثو داسې کاميـاب اسـتاذ و چـې کلـه بـه دسفرنه هـم راستون شـونومخامخ بـه دوره حـديث تـه ورننـوت اوداسـې تحقيقي سبق به يې وويلوچې ددوره حديث ټـول طالبـان بـه يې هک حيران کړل .

هغه ډېر ښه قلم څښتن اوربښتيا داده چـې دنـړی پـه سويه يونامتوليکوال و؛ پـه ليکوالی کـې دهغـه لـوی کـمال داوچې ليکنې به يې يواځې سياسي يـاديني نـه وې بلکـې پـه هره موضوع به يې ليکنې کولې اويوه موضوع به هم داسې نه وه چې اړتيا به يې وه او دده له لـورې بـه پـرې ليکنـه نـه وه راغلې ؛په ۱۹۶۵م کال کې هغه په اردو ژبې کې خپرېدونکې دالحق په نوم يـوه علمـي او سـياسي مجلـه شروع کـړه چـې دهغه دزياتو هڅو ، ښه استعداد او وسـعت ظرفـی لـه املـه دامجلـه لـه پيـل نـه پـه ډېـرو ښومضـامينوغني شـوه نوپـه هېوادکې دننه اودهېواد نه په بېرون نړی کې يـې داردوسره بلدوخلکوکې ډېرزر اوزيات مقبوليت ترلاسه کړ ؛ دېرصغير پوهانو، قلموالو ، عالمانو ، صلحاو، فرهنگپـالو اونـامتو مجلـو اواخبارونوالحق ښه استقبال کړه اوپـه خپـل ۵۳ کلـن ژونـد کې يې دعلم ، فن ، ادب ، اسلامي لارښوونواو اسلامي ثقافت په اشاعت؛ داسلام، مسـلمانانو ،اسـلامي شـعايرونه ددفـاع ؛ دباطلوفرقو اوډلودابطال ، دغلطو افکـارو اوعقايدوپـه رد او دغاصبو ټولـو کفـري ځواکونودارادونـه دامـت خبرولواوپـه مقابل کې دامت په رابيدارولوکې ډېر لوی رول ولوباوه .

مولانا سميع الحق ته چې الله تعالی دتـاليف اوتصـنيف لوړ استعداد اوښه ذوق ورکړی و نوله الحق پرته يې هـم پـه لسگونو کتابونه ليکلي دي چې الله تعـالی ورتـه پـه عوامـو او خواصو دواړو کې ډېر مقبوليت ورکړی .

دتـاليف اوتصـنيف کارتـه دوسـعت ورکولـواو دنـورو دتربيت اوترقی لپاره مولانا سميع الحق په جامعه کې دننـه دموتمرالمصنفين په نوم اداره جوړه کړی وه چې هم يې ستر ديني خدمتونه وکړل اوهم پکې په لسگونوعلماء تربيه اوښـه اهل قلم وگرځېدل څکه چې مولانا سـميع الحـق هغـه سـايه داره ونه ، نه وه چې ترې لاندې نوروکوچنيو ونو وده نه شـوه کـولای بلکـې هغـه درڼا هغـه لمـر وو چـې يـې بـې شـمېره شپوږميو ته درڼا اخستلوموکه ورکوله .

مولانا سميع الحق دمتحده هندوستان په سطحه دلوی عالم ، عظيم مربي ،کامل ولي اوسـترمحدث حضرـت مولانـا عبدالحق ځوی و؛ دهغه رحمه الله په تربيت کې روزل شـوی او دشفقت ترسيوري لاندې يـې ارتقـايې پړاوونـه وهـلي وو ؛ دهغه پـه لاس جـوړې شـوې سـترې جـامعې کـې دهغـه پـه نگرانی کې يې دفنونواوعلومواوږد تدريس په برکت علمي وده کړی وه.

نو ددې عظيم محدث سره دانسبي تـړاو هـم دمولانـا سميع الحق صاحب ددې لوړ مقام يوستر لامل وخوداسې نه چې گينې داهر څـه يـې ددې نسـبي تړاولـه املـه وو اوهغـه گينې ځان پـدې وړانـدې کـړی وچـې (پـدرم سلطان بـود ) رښتيا داده چې مولاناسميع الحق شهيد رحمه الله تعـالی تـه الله تعالی ډېر لوړاسـتعدادورکړی و ؛ ډېرقـوي ذهـن اوقـوي حافظه ورنصيب شوی وه ؛ گنو لويوعلماءو به هغـه دوخـت انورشاه کشـميری بللـو؛ سـترفقيه ، ولـی کامـل فريدالـدهر مفتـی محمدفريدرحمـه الله تعـالی بـه هـم دده دذهانـت اوقوي حافظې ستاينه کوله اوکله ناکله خوبه يـې تـردې هـم وويل چې ارمان !خواري اوکوشش زما وای اوذهـن اوحافظـه دمولانا سميع الحق وای .

هغه په خپل ژوندکې دنړۍ ګڼوهېوادونوته سفرونه وکړل دنړۍ ټوله رنګيني يې له نېږدې وليدله دمختلفوکلتورونو،ژبو، رنګونو ،مزاجونواونظرياتواوپه فروعوکې دجلا جلا رايولرونکوپوهانو،استاذانواوعلماءوسره به يې اوږدې ناستې اوغونډوکې ګډون کېدلو خوهغه مثالي استقامت وښود اوپه يولحاظ دتجدد اوپه فروعي مسائلوکې دتشدد ښکار نه شو ؛ نه يې دسلوک سمه لار پرېښوده ؛ نه يې دخپل مذهب او خپلې فقهې اتباع ترک کړه ؛نه يې دساداتواوکرامو امامانواوحقومذهبونوپه اړه دچا بې ادبي وزغمله اونه يې يوځای کې پدې اړه ادنی مداهنت وکړ بلکې په ډېرې مېړانې به يې دټولو اسلافو اوخصوصاًدامام ابوحنيفه رحمه الله تعالی نه دفاع کوله .

هغه دتدريس اوتقريردميدان ډېرلوی شهسواړو؛دقلم اوژبې قوت يې په ټول هېواد او سيمې کې مشهورو په عوامي اجتماعاتوکې به په عام فهمه ، ډېرې ساده او ولسي- ژبې غږېدلواوډپښتوسوچه اصطلاحاتو ؛امثالو ،متلونو اوشعرونو به يې وينا ته ډېرحسن وربښلو؛ دعربی ،فارسی ،پښتو او اردوژبودشعرسره يې هم ډېره مينه وه اوديادوژبوپه زرونوشعرونه ورته ياد وو .

سره له دې چې هغه دعاليه اوآليه علومو يومنلی لوی عالم ؛ دهېواددترټولوسترې جامعې مشر- او دوره حديث استاذ و؛ ديولوی ګوندمشر-وداوږدې مودې لپاره دسنا مجلس غړی و ؛جهادي ګڼوحرکتونوخپل روحاني مشرګاڼه اونور ګڼ هغه کمالات پکې ووچې موترې په سرکې يادونه وکړه خوسره ددې ټولوکمالاتو دهغه په طبيعت کې لويې نه وه بلکې هغه يومنکسرالمزاج شخصيت و؛ ډېرخاکسارانسان و؛ په طبيعت کې يې الله تعالی ستره عاجزي ايښې وه ؛دغروراوتکبربوی هم پکې نه و؛ دډېرو نرمو اوعالي اخلاقوڅښتن و؛هرچاسره به په ورين تندي مخامخ کېدلو؛ دهرمسلمان په وړاندې يې تل دروازې خلاصې وې ؛غريب ملا ،غريب طالب اوغريب مجاهد به ورسره هروخت کتلای اومشورې به يې ترې اخستلای شوې .

جهادي مشرانوته به يې تل دولس سره دښه سلوک توصيه کوله ؛په جهاد کې دبې ځايه تشددسخت مخالف و؛ دبې ګناه انسانانودوژلواوزرولوسره يې ډېرنفرت لاره اودابه يې داسلام اوجهاد دبدنامۍ لوی سبب ګڼلو اودمسلمانانو اوخصوصاً جهادي حرکتونوپه خپلمنځي اختلافاتوبه سخت خفه کېدلو اوتل به يې ويل چې دسواداعظم او دمسلمانانو دلويې ډلې نه مه جداکېږئ ګيني دنيا اوآخرت به موتباه شي .

دمسلمان ملت يووالی اودواحدقيادت لاندې راټولېدل يې لويه هيله وه اوددې لپاره به يې ډېرې دعاوې اوهڅې کولې ؛ اعلاءکلمة الله اودشريعت نفاذ يې دژوند يواځنی ارمان و ؛دشريعت دنفاذ اودنظام مصطفی درائج کولوسره داخلاص او وفاپيکرو ؛ ددې لپاره يې له بل هرعالم نه ډېرې هڅې کولې اودډېرجرأت نه يې کار اخستلو ؛خصوصاً پدې اړه يې څوک سيال نه و .

حق پالنه ، دحقې لارې ملګرتيا، دهرجبراوظلم په وړاندې په کامل جرأت دحق اظهار، په حقې خبرې ټينګ ودرېدل يې مثالي واوپدې لارکې دهيچا اودنړۍ ديوطاقت نه وېرېدونکی نه و؛ دامريکايي اشغال په ړومبوورځو کې به چې دجهاد اويوعام مجاهد نوم اخستل هم جرم ګڼل کېدلو مولاناصيب به دنړۍ په هرګوډ کې ټولومجاهدينوته په ټوليزه توګه اواميرالمؤمنين ملامحمدعمرمجاهد ،شيخ اسامه بن لادن اومولوي جلال الدين حقاني رحمهم الله تعالی ته په ځانګړي ډول په هرې جلسې او په مدرسه کې ددرس په پای کې په لېولپو دعاګانې کولې ؛ دزرونويالسګونوزروتنانوترمخه په عامولويوغونډواو اجتماعاتوکې به هغه په خپلې هرې ويناکې دجهاد ديادو درې واړوقائدينو، اسلامي امارت اوطالبانوستاينه اودمحبت

اوعقیدت نه په ډکوالفاظوغوره یادونه کوله اوتل به یې داویل چې نه یواځې زموږبلکې دټولې نړۍ دامېدسترګې دطالبانواسلامي تحریک ته دي .

رښتیا داده چې دجهادسره دمولاناسمیع الحق صیب مینه په بلې هرې مینې غالبه وه اودامینه تش په نامه مینه نه وه بلکې دروسانوپرضد دافغانستان دجهاد دپیل نه ترشهادت دهغه ټول ژوند ددې مینې ژوندۍ نمونه وه ؛دهغه عواماوخواصوته یوه وینا اوبیان به هم دجهاد دتائید اوترغیب نه خالي نه و؛ خپل هرشاګردبه یې په جهادي روحیه روزلواوپخپله یې هم ځان دافغانستان جهادکې دعملي شرکت نه بې برخې کړی نه و.

هغه په کامل زړورتوب ځکه دحق اظهارکاوه اوله یوطاقت نه هم نه وېرېدلوچې ټول ژوندیې دالله تعالی په طاعت کې تېرشوی او مرګ ته یې کامل چمتووالی نیولی و.

داچې په اسلامي هېوادونوکې دشرعي نظام نفاذېې ډېرلوی ارمان ونو په کوم هېوادکې به که اسلامپالوته کوچنی بریالیتوب هم په برخه شوډېر زیات به پرې خوشالېدلو . پراسلامي نړۍ دمسلطو هغو حاکمانو یې سخت نفرت کاوه کومو چې اسلامي نړۍ سیکولرزم لورته روانه کړیده اودامریکا دراضي کولوپه موخه له شرعي حدودو اوړي اوددین احکام ترپښولاندی کوي .

دوحشت نه په ډکه طریقه دمولانا سمیع الحق شهادت اوزموږ نه جدایې یوه لویه ضیاع اوعظیمه سانحه ده ؛ یوه لویه دیني جامعه دخپل لوی مهتمم اوعالي منتظم نه محرومه شوه ؛ دعلم یولوی باب بندشو؛ ګڼ دیني حرکتونه دخپل یوشفیق سرپرست نه بې برخې شول ؛ دجهاد یولوی مؤید له منځه ولاړ؛ دحق یوقوي اواز چپ شو؛ خوداچې الله تعالی ورته دشهادت لویه مرتبه ورکړه او دتمې نه پورته خلکوېې چې په جنازه کې شرکتوکړنو داپکې دخوښۍ یو ښه اړخ دی .

دمولاناصیب دجنازې لپاره په اکوړې کې دخوشحال خان خټک وسیع عریض کالج مقرر شوی وخو دتمې پورته ډېر لوی مخلوق جنازې ته راغلو؛ دانسانانو داسې لوی سېلاب وچې په کالج کې ځلورمه برخه خلک هم ځای نه شول نوجنازې ته راغلي خلک مجبوراًداسلام آباداو پېښور ترمنځ غزېدلي دواړو عمومي سرکونوباندې ودرېدل چې په دواړو سرکونو دولاړوخلکو آخر بېخي نه معلومېدلو نوځکه رسنۍ هم دې اعتراف ته اړشوې چې دراغلوتنانوتعدادبه ۸۵ سوه زرونه تر یو ملیون پورې و. دمسلمانانودسترازدحام له امله ترساعتونوپدې سرکونودترافیکو تلل راتلل بند وو؛ دانسانانویوداسې سترسمندروچې خلکوته یې دعرفات میدان رامخې ته کړی واوټولوپه یوه خوله ویل چې دومره ستره جنازه نده لیدل شوې ؛ پدې هېوادکې ډېرستراشخاص وفات شوي خوپه تېرو دوه درې لسیزوکې دیوشخص جنازې ته هم دومره مسلمانان نه ووراغلي څومره چې دمولانا صیب جنازې ته راغلل.

سره له دې چې دانسانانویوعظیم ازدحام وخوبیاهم نه ځوک دجنازې نه برخې شواونه کومه کوچنۍ بدنظمي رامنځته شوه چې دادخدای په نزد دهغه دلوی مقام اومحبوبیت لویه نښه وه .

هو! هغه دخدای محبوب بنده وځکه یې دمسلمانانوپه زړونوکې دهغه سره داسې بې کچه مینه اچولې وه چې نېږدې سیمې خونېږدې وې له کراچۍ ،بلوچستان اوافغانستان نه یې هم جنازې ته هغه تنان راغلي ووچې دده رحمه الله تعالی سره یې داستازۍ اوشاګردۍ تړاو نه و.

دالله تعالی نه دهغه لپاره په آخرت کې لوړې مرتبې اودده دلارې په پیروانوحق پرستوعلماءودهغه دتشې ډکول غواړو .



# دتحقیقاتي هیئتونو نتیجې له چاسره دي ؟!

عابد

عجیبه ده! برده ګي او غلامي خو به هم یو حد لري !؟ دایویشتم قرن او دومره پربوتې او بې احساسه غلامي !!؟ که دنن بدمعاش او زورواکي خپلو ګټوته خلک په زرو او پیسو دومره مریان کوي چې په ټول ژوند دهغوی په مخالفت څه چې دطبیعت په خلاف هم یوه خبره نه شي کولای ، سره له دې چې داوخت خو هم هغه وخت نه دی چې دخپل ژونداومعیشت لپاره سړی تردې حده مجبور شي ، په تېره بیا هغه چې ځان دنړۍ په سطحه داقتصادي ستونزو دحل مبتکر او مفکر بولي !!؟؟

واشنګټن ته د " نیکولسن" ناکامې ستنېدا امریکایان دومره احساساتي او لېوني کړه چې دویم قوماندان یې دخپلو ناکامیو دانتقام په لېونۍ جذبه راولېږه ترڅو په ترورونو، وحشتونو اوبې ساري ظلمونو دافغانستان له مسلمان مظلوم ولسه انتقام واخلي، له هماغې ورځې ده چې د" سکاټ میلر" په راتلوسره په بېلابېلو حملوکې شدت او ډېروالی راغلی .

که " سکاټ میلر" او په مجموع کې امریکایانو دکندهار ګوزار نه وای خوړلی، نو زمونږ په مظلوم ولس به لانور دچاپو او بمبارونو څه حال و ؟ هغوی چې له اصله بې رحمه اوجنایت خوښي خلک دي دمقابل لوري په ځای له عامو خلکو دانتقام اخیستو هیڅ پروا هم نه کوي .

دتېرې میاشت په وروستیو شپو ورځو کې یې دننګرهار،لغمان ،غزني، میدان وردګ ،پکتیکا، کندهار، کندز ،خوست او پکتیا ولایتونوکې پرعامو خلکو ډېر په ښکاره ډول بمبارونه ترسره کړل ډېرې ښځې اوماشومان یې شهیدان کړل، دکابل افغاني غلامانو یې په وار وار دغه حملې په ځان منلې او په ډېره سپین سترګۍ یې د تروریستانوپه ضد! دملي امنیت بریدونه ګڼلي، خو یونیم ځای چې خبره ډېره مطبوعاتي شوې او ټولو خلکو لیدلي چې وژل شوي ښځې اوماشومان دي، بیا نو ولایتي ویاندویان په پوره اخلاص رامیدان ته شوي او ځانونه یې دمطبوعاتو په مخ له مسؤلیته په یوه داسې بهانه ویستلي چې هروخت یې دخپلې بې وسۍ په صورت کې په دغه بهانه ځان خلاص بللی او ویلي یې دي چې " ...ډېرژربه سیمي ته حکومتي پلاوی لاړشي څېړنې به وکړي یا ..."

په داسې حال کې چې دهیواد په هرکونج کې چې څومره بشري ضد دولتي جنایات ترسره شوي په اړه یې دهیڅ یوه پلاوي دڅېړنو نتیجې نه دي اعلان شوې اونه چالېدلې، پوښتنه هم همدا ده چې دابه له چاسره وي اوکله به یې هم څوک ووینې ؟ نه ! هیڅکله نه! لومړی خو داخبره داعلان ترهماغه صحنې محدوده وي او هسې دخلکو په سترګو کې خاورې اچول وي اوکه بیا فرض کړه چې ولاړهم شي، نو داسې افراد به ځي چې همدغه ډول امریکایي ګټوته ترافغاني دا په څو برابره ډېر ژمن وي او یاکه څېړنې یې څه پایلې هم ولري، خو دآقایانو مزاج به ددې تقاضا نه کوي چې په عام ډول اعلان شي او عام او خاص ټول خبر شي .

ددې په ځای چې دخپلې بقا لپاره ملت خپل کړي او په کار وي چې حتی ګناهګاراو مجرم هم په عفوه او درګذر دځان کړي ° لا لګیا دي بې ګناه خلک ، ښځې او ماشومان یې د خپل قساوت هدف ګرځولي او هره شپه یې په یوه نه یوه کور شپني عملیات ترسره کړي وي او په ټوله معنا وحشت یې ښکاره کړی وي .

دوی په قصدي ډول شاید دا ددې لپاره کوي چې په ولس کې وېره خپره کړي او دخپلې بقالپاره یې دکارنده توکي په ډول کاروي ، خو دا ولس هیڅکله او هیڅچا هم په زور نه دی تابع کړی ، طالبانو دعفوې او مرحمت په بنیاد خپل کړی، همدا لامل دی چې اوس دهغوی فتوحات ورځ تربلې پرمخ روان دي او لاسپوڅی حکومت څه چې امریکایان یې له مقابلې عاجز شوي دي .

که هرڅو دخلکو په سترګو کې د تحقیقاتي پلاوو او تحقیقاتو په نامه خاورې واچول شي، ګټه نه کوي او نور دا کوږ بار ترمنزله نه رسیږي،مونږ وینو ډېری هغه اشخاص چې دیرغل له پیله تر تېرې یوې نیمې لسیزې پورې دغرب د دیمکراسۍ په چپاوکې خورا فعال وو اوس یې حرکت او نظر ډېر تغیر کړی او دروان وضعیت او نظام په وړاندې یې جبهه نیولې ، بلکې عام ولس اوس په هرڅه پوه دی او نور په هیڅ ډول اشغال نه شي منلی .



# د کابل ادارې له لورې د قومي مليشو د جوړولو په اړه

## د اسلامي امارت اعلاميه

په دې ورستيوکې د کابل ادارې مشر اشرف غني ځينو ولاياتو ته د سفر په مهال د سيمي ميشتو اولسونو تـه د داسي فکـر ورکولو هڅه وکړه چي گويا مجاهدين له هغوی سره د خاص قومي يا مذهبي تعصب په بنا جگړه کوي او د هغـوی سر او مـال ته ځانگړی خطر متوجه دی.

بيا يې نو په همدې پلمه هغوی ته قومي مليشې او کنډکونه ور منظور کړل چې وروستی اقدام يې د باميـانو ولايـت تـه د پنځه سوه سيمېزو مليشو منظوري وه.

د افغانستان اسلامي امارت د کابل اداري دا ډول پـردي پـال او د مـلي گټـو ضـد حرکـات د پخـواني کمونسـتي رژيـم د وروستيو ناکامو هڅو بيا تکرار بولي چې د خپل اقتدار د زوال په وخت کي يې د گلمجم، کيهان، جبار او نـورو مليشـو بنسـټ يې کېښود، قومي کنډکونه يې جوړ کړل او د سترو جناياتو، چور، چپاول، وحشت او پراخو خونريزيو بنسټ يې کېښود؛ خو لـه دې ټول وحشت سره سره يې کمونستي رژيم ته د گټي پرځای تاوان وکړ او کوم درد يې پري دوا نه شو.

اوس چې بيا د کابل لاسپوڅی رژيم د ژوند وروستۍ سلگۍ وهي او د خپل نجـات لپـاره ولسـونه تيرباسـي دا ډول غيـر ملي او د ټولو منل شويو ارزښتونو خلاف حرکت به هيڅ فايده هم ورته ونه کړي.

اسلامي امارت يوځل بيا په صراحت سره اعلانوي چې د مالستان، جاغوري او خاص ارزگان په شمول د هيواد په بېلابېلو برخو کې زموږ د عملياتو موخه يواځې د دښمن نظامي اهدف او کسان دي، د سيمې ملکي خلک زمـوږ هيـوادوال دي چـې د سر، مال او عزت ساتل يې د اسلامي امارت د هر مجاهد دنده ده.

په يادو عملياتو کې هيڅ ملکي کس، کور او ځای ته زيان نه دی رسيدلی او نه هم مجاهدين د داسې کولو اجازه لري.

خو هغه کړي چې د قوم، مذهب او ځينو نورو تعصباتو د راپارولو په منظور د سيمې خلکو ته ناسم ذهنيـت ورکـوي، يـا داسې پروسي عملي کوي او د کابل د شړيدلي ادارې د بقا لپـاره تعصـبي لښـکري جـوړوي د مجاهـدينو عمليـات او کړنـې د ملکي خلکو په ضد بولي هغوی ته جدي خبرداری ورکوو چې د اسلامي امارت استخباراتي مسئولين به د داسې لوی خيانت د مرتکبينو جدي څارنه کوي او عندالموقع به مناسب ځواب ورته ووايي.

موږ د دغې اعلامي په خپرولو سره خپلو هزاره هيوادوالو ته ډاډ ورکوو چې د عملياتو پـه مهـال بـه د دوی املاکـو، سر او عزت ته هيڅ زيان نه رسيږي، که د چا زامن او خپلوان د کابل ادارې په نظامي ليکو کې دنده لري هغوی دې د دښمن لـه ليکـو را وباسي ژوند يې په امن دی.

د دغه خبرداري له خپريدو څخه وروسته که هرچا او هر نهاد د افغانانو ترمنځ د نفرت اچولو هڅه وکـړه، بيـا د هـيڅ ډول شکايت حق نه لري.

اسلامي امارت مجاهدينو ته لارښونه کوي چې د دغه خبرداري څخه سرغړوونکي کلک تعقيب کـړي، هرځـای چـې پـه لاس ورشي توقيف دې يې کړي او د اسلامي امارت محاکموته دې يې وسپاري.

د افغانستان اسلامي امارت

۱۴۴۰/۳/۷هـ ق

۱۳۹۷/۸/۲۴هـ ش ــ ۱۵/۱۱/۲۰۱۸م